**د کتاب ځانګړنې:**

| | |
|---|---|
| **د کتاب نوم :** | الحدائق ذات البهجه ( فقهي ضروري مسائل ) |
| **لیکوال او ژباړونکی :** | مولوي نقیب الله منیب « شېخیوال» |
| **ترتیب کوونکی :** | نجیب الرحمن « هلال » |
| **کال :** | ۱۳۹۶هـ،ش |
| **د اړیکې شمېره :** | ۰۷۸۵۱۶۳۶۰۵ |

**د ليکوال پېژندنه :**

مولوي نقيب الله چې اوس په ۱۳۹۵ هـ،ش کال کې د ۴۱ کلونو په عمر سره ژوند کوي د وردګو ولايت سيد آباد ولسوالی د شېخي د کلي اوسېدونکی په ۱۳۵۳ هـ،ش کال د عقرب په مياشت کې زېږېدلی دی او ټول ديني علوم : تفسير،حديث،معاني،صرف،نحوه،منطق،فقه يې د افغانستان او پاکستان د ډېرو سپين ږيرو علماوو مدرسينو څخه حاصل کړي دي چې ډېر زحمتونه او تکليفونه يې په دې لاره کې ګاللي دي د هغې استادانو نومونه او کوم کتابونه يې چې ورڅخه لوستي دي په دې باندې مولوي صاحب مستقله رساله ليکلې ده چې د هغه د ويلو تاريخ هم په کې ذکر دی بالاخره دی په ۱۴۲۲ هـ،ق کال د دارالعلوم عربيه کراس عبدالله خان بازار ته نيژدې د بلو چستان په مشهوره مدرسه کې يې د قدر په مرتبه کې د فراغت سند ترلاسه کړی دی او په ۱۳۷۱ هـ،ش کال د حمل د مياشتې په ۸ نېټه د جغتو ولسوالی د دهنې په کلي کې د مدرس عالم مولوي سلېمانزي سره دېره شو ، وروسته د عبدالمحی الدين قريې ته د جغتو د دولانې د قريې د مرحوم مولوي اخترمحمد چې مشهور عالم او مدرس دی د جنګجای قريې د مشهورعالم مولوي عبدالقديم آخندزاده او سيد رحيم جان آغاصاحب استاذ هم وو همدارنګه د نورو لويو علماوو استاد وو د هغه سره دېره وو د مرحوم مولوي صاحب اخترمحمد سره يې د نحوې او علم صرف کتابونه وويل او ډېر کلونه يې ورسره تېرکړل چې ډېر ورباندې ګران هم وو ، د يوسف خېلو آخندازاده صاحب يې هم استاذ وو چې اصلي نوم يې عبدالله وو او هغه بيا د مولوي صاحب نقيب الله د نيکه مرحوم ملاصاحب سيدعلم چې د افغانستان په سطحه لوی عالم او مدرس وو شاګرد تېرشوی وو د مولوي صاحب نقيب الله قبله ګاه صاحب مولانا غلام حسن آخندزاده صاحب

وو او مولانا غلام حسن آخندزاده صاحب په ۱۳۱۵هـ،ش کې د گردېز په سحاق د شاه گوم خېل منطقي په زرمت کې زيږېدلی دا ځکه چې د مرحوم مولانا غلام حسن پلار مرحوم ملاصاحب سيدعلم په هغه وخت کې زرمت کې ملايي کوله درس يې درلود او مشران طالبان به ورسره وو نو ځکه مرحوم مولاناصاحب هلته تولد شوی دی او بيايې په وردگو کې د مختلفو علماوو او او په ميدان شهر کې د ياري قلعې په ابراهيم خيلو کې په ملاصاحب عبدالله جان چې د وخت مشهور عالم وو او د ملاصاحب سيدعلم شاگردوو درسونه ويلي وو بالآخره د دارالعلوم عربيه کابل څخه فارغ شوی دی او د هغه څخه وروسته يې د معارف په چوکاټ کې په رحمن بابالېسه ، اونخي درې په متوسطه ، او د بابکر خيلو په متوسطه کې چې اوس د انصار المؤمنين د لېسې په نامه سره فعاليت کوي تدريس کړی دی د هغې څخه وروسته د منحوسو خلقيانو او پرچميانو په دوره کې يې وظيفه ترک کړې او په خپله پلارنی قريه شيخي او نورو شاوخوا قريو کې يې ملايي کوله او په مجاهدينو پورې مربوط ژوند يې تېرولو ، کله چې د مجاهدينو لخوا دې جهاد په دوره کې مدرسې جوړې شوې نو زموږ د قريې په مدرسه کې يې د ديني مضمونونه او خصوصاً قرائت او تجويد درس ورکولو ځکه ده په کابل کې قرائت ويلی وو او ډېرښه قاري وو د هغې څخه وروسته يې د مهرو په نور المشايخ ښونځي کې تدريس کولو چې تر آخر د عمره پورې يې د قران کريم درس تجويد او ديني علوم تدريس کړل او مسلمانانو ته يې ډېر خدمات وړاندې کړل ډېر شاگردان يې وروزل ډېر تقوای داره او زحمت کښ وو بالآخره په ( ۱۳۹۴ – ۲ – ۱۹ هـ،ش ) تاريخ وفات شو. انا الله وانا اليه راجعون.

## د مولوي صاحب نقيب الله ( منيب ) استاذان

زما ټول استاذان تقريباً دوه دېرش ( ۳۲ ) نفره دي چې ټول سپين ږيري مدرسين مشار اليه باالبنان وو چې د اکثره عمرونه د ( ۶۰ ـ ۸۵ ) کلونو تر منځ وو د بعضو نومونه په لاندې ډول سره دي : خپل والد مرحوم مولانا غلام حسن صاحب ، مولوي سلېمانخې د کلاندې د قريې ، مرحوم مولوي صاحب اخترمحمد د دولنې قريې ، مولوي عبدالله مشهور د يوسف خېلو په آخندزاده صاحب ، مولوي صاحب عتيق الله د لوړې د قريې ، مولوي صاحب عبدالقديم آخندزاده صاحب ، مولوي نصرالدين هروي ، مولوي عبدالستار قندوسی ، مولوي عبدالواحد ، مولوي مرحوم عطاءالله شيخ الحديث مدرسه عربيه كراس قلعه عبدالله خان بازار بلوچستان او دغه نصرالدين هروي څخه راوروسته د ذکر شوې مدرسې استاذان وو ، شيخ الحديث مولوي محمد ظريف صاحب د ذكر شوې مدرسې استاذ ، او په پېښور کې د شاه منصور بابا مدرسې په استاذ باندې د قرانکريم ترجمه ، شيخ الحديث مولانا محمد ادريس صاحب چارسده ترنگزی چې د زرگونو علماوو استاذ دی زما هم استاذ دی او دوه واره مې وړه دوره وربانديې ويلې ده او مولوي صاحب فخر الاسلام ، مولوي صاحب هاشم مدرس عالم چاسده ، قاضي صاحب محمد امين ، مولوي صاحب سيد قريش ، شيخ الحديث امان الله صاحب ، مولوي صاحب محمد انور اصلي وطن غزنی ساكن چارسده ، مولوي عبدالطيف روضه غزنی ، مولوي عبدالقدوس ولسوالي چک وردگ ، مولوي صاحب نعمت الله لوگر د زرگونو علماوو استاذ ، مولوي صاحب فضل الرحمن گردېز سيدکرم مشهور په عثماني خېلو آخندزاده صاحب د وخت او عصر لوی عالم دی يو کتاب يې په نامه د تنوير

المجاهدين تصنيف شوی دی د روسانو د تجاوز په وخت کې په پکتيا کې د جهاد امير پاتې شوی دی او د حرکت انقلاب اسلامي د علماوو د شوری غړی تېرشوی دی ، مولوي عبدالستار د بلوچستان د پشين سميزي علاقې کې مدرس عالم چې د ډېرو لويو علماوو استاذ دی يو کتاب يې تصنيف کړی د ملتقط په نامه او کله چې ماورځخه درسونه ويل عمريې د ( ۸۰ ) کلونو په شاوخواکې وو دا د مشرانو استاذانو نومونه وو کفايت کوي الله جل جلاله د دوی خدمتونه او تدريسونه په خپل دربار کې قبول کړي او که څوک وفات وي الله جل جلاله يې د قبرونه منور لري زه هم همېشه ورته په خمس الاوقات لمونځونو کې دعاګانې کوم او تلاوتونه پسې کوم الله جل جلاله دزموږ څخه هم د دين خدمت واخلي او الله جل جلاله د دتدريس کولو توفيق راکړي.

## د مرحوم مولانا غلام حسن د والد ( پلار) ژوند ته لنډه کتنه

په مخکې زمانوکې به خلکو لويومدرسينو علماوو ته ملاصاحب ويلو نو مرحوم ملاصاحب سيدعلم د مرحوم خدای دوست زوی وو او ماته به مې خپل کاکا مرحوم ملاصاحب غلام سرور آخندزاده قصه کوله چې جناب خدای دوست بابا خوب ليدلی وو چې په دې خوب کې وينم چې په ځمکه کې د ونو نيالګي کښېنوم نو د وخت يو عالم ته يې دا خوب ويلی وو هغه داسې ترجمه ورکړې وه چې دا زوی دې په سبق پسې ولېږه الله جل جلاله به ورڅخه لوی عالم جوړ کړي بيابه هغه علما وروزي او دا د دين نيالګي به ته کښېنوې هغه چې مرحوم خدای دوست بابا خپل زوی ملاصاحب سيدعلم په درس پسې ولېږلو چې په يوولسو ( ۱۱ ) کلونو کې يې ټول علوم حاصل کړي وو او دی بيا د افغانستان د لويو مدرسينو د جملې څخه وګرزېدا مرحوم ملاصاحب سيدعلم د مرحوم حضرت صاحب نورالمشايخ فضل عمر مجددي سره په ميدان کې د

ابراهیم خپلو په ملاصاحب ( د خړیانو په ملاصاحب ) درس ویلی وو او دواړه ملگري وو په حضرت صاحب باندي ډېر گران وو او د مهرو د قریې د خلیفه صاحب سره به یوځای ورتللو ما د مرحوم ملاصاحب سیدعلم په ژوند باندې یوه مستقله رساله لیکلې ده خلاصه د مرحوم ملاصاحب چې ټول عمر یې په تدریس کې تېر کړی دی څومره چې زه زما د کاکا له خولې څخه لیکم لوی علماء مدرسین یې شاگردان وو لکه د وردگو مشهور عالم د هفت آسیاب د قریې ملاجانان ملاصاحب ، د یوسف خپلو آخندزاده صاحب البته آخندازاده صاحب به ویل چې زه په هغې وخت کې څه کشر طالب وم او یو څه ټیټ کتابونه مې پرې ویلي دي خو ده به ویل چې ډېرلوی عالم وو او د چک په ولسوالی کې د سیآب د درې لوی مدرس عالم ملاصاحب محمد انور یې شاگرد وو همدارنگه ملاصاحب عبدالواحد دي لوگر ولایت هغه یې هم شاگرد وو نور معلومات زه د ده په اړه نه لرم خو ما په مستقله رساله کې تفصیلات ذکر کړي دي بالاخره په خپله قریه کې یې امامت درلود او ملاصاحب عبدالواحد هم په همدې قریه کې ورسره وو په ( ۱۳۲۵ هـ،ش ) کې وفات شوی دی او د جنازې لمونځ پرې د مهرو خلیفه صاحب ادا کړی دی.

په شرح عقائد باندې یې قلمي حاشیې شته چې په ( ۱۳۱۲هـ،ش ) کې یې لیکلې دي او په آخرو هدایو یې په ( ۱۳۱۸ هـ ، ش ) کې حاشیې لیکلې او ختمې کړې دي او په شرح جامي او داسې نورو کتابونو باندې هم حاشیې لري په دې پورته کتابونو باندې مرحوم ملاصاحب سیدعلم حاشیې لیکلې دي چې اوس هم زموږ سره موجودې دي.

## مننپانه

د قدرمن او عزتمنداستاد نجیب الرحمن هلال پلار زما مولوي صاحب نقیب الله منیب د نیکه مرحوم ملاصاحب سیدعلم چې د افغانستان د لویو علماوو استاذ وو او مخکې یې تذکره ذکر شوه د هغې خوریئ ( خوریې ) دی چې دایې زمورږ سره د دوستی علاقه ده ، استاد نجیب الرحمن هلال دینداره د پنځه وخته جماعت عامل په مسنونه طریقه برابر شخص دی ماچې کوم کتاب لیکلو بیابه مې ده ته ورلېږلو نو ده هم مساوي په کمپیو ټر لیکلو او په دې خدمت کې یې ډېر زیات زحمت ایستلی دی الله جل جلاله یې د ورته قبول کړي او الله جل جلاله یې د په دارینو کې کامیاب لري زه هم ورځخه ډېر زیات خوشحاله یم سره د ده له زیاتو مصروفیتونو بیا هم د ده څخه یو جهان مننه کوم او په ګډه دواړه الله جل جلاله ته سوال کوو چې دغه کتاب په خلکو کې محبوب وګرځوه ترڅو په ښه ډول ورڅخه استفاده وکړي.

مولوي نقیب الله منیب شېخیوال

د ضیاالمدارس مدرسې استاذ

# فهرست


| شماره | عنوان | صفحه |
|---|---|---|
| 1. | مقدمه | 1 |
| 2. | تبرک یعني برکت حاصلول په آثارو د انبیاوو او صالحینو جائز دي | 3 |
| 3. | د نبي عليه السلام قبر مبارک وسیله گرځول الله جل جلاله ته | 3 |
| 4. | په کوم شي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم راتگ کړی وي ویې کړی او له څه شي څخه چې یې منع کړي یی مه یې کوئ | 5 |
| 5. | د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم معجزې | 7 |
| 6. | د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم دوهمه معجزه | 7 |
| 7. | د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم دریمه معجزه | 8 |
| 8. | د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم څلورمه معجزه | 9 |
| 9. | د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم پنځمه معجزه | 10 |
| 10. | د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم شپږمه معجزه | 11 |
| 11. | د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم لوړ مقام او تنها خصوصیت په ټولو پیغمبرانو او مسلمه امتونو کې: | 11 |
| 12. | اَشَدُّ الْمَصَائِبِ مُصِيبَةُ وفات رسول الله صلى الله عليه وسلم | 14 |
| 13. | فضلات د نبي کریم صلى الله عليه وسلم طاهر وو ، وینې مبارکې او بولې یې صحابه کرامو څښلې دي (فتاوی تنقیح حامدیه علامه شامي) | 15 |
| 14. | خصوصیة النبي کریم صلى الله عليه وسلم وعلي رضي الله عنه في مكثهما فی المسجد | 15 |
| 15. | د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم نومونه | 16 |
| 16. | د صا لحینو قبرونه معلومول | 18 |
| 17. | رابطا را سه بخر قة (الحدیث) | 19 |
| 18. | د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم خط حضرت معاذ رضي الله عنه ته | 20 |
| 19. | وعن معاذ رضي الله عنه قال اوصاني رسول الله صلى الله عليه وسلم بعشر كلمات | 21 |
| 20. | د بي بي خدیجې رضي الله تعالى عنها مناقب | 22 |
| 21. | د صحابه کرامو د کرامت بیان | 23 |
| 22. | فالقى البحر حو تایقال له عنبر | 24 |
| 23. | د زیات عبادت کوونکو خلکو یو څو نمونې | 25 |
| 24. | د قران عظیم الشان په درېیو ورځو کې حفظ کول | 25 |
| 25. | د تعویذ په غاړه کې اچولو اثبات | 26 |
| 26. | د ښنو پورته کول په لمانځه کې | 27 |

27. که څوک په صلوة تسبیح لمونځ کې سهوه شي نو سجده سهوه به څنګه کوي ........ 27
28. په لمانځه کې د خپلې عاطسې جواب په یر حمک الله ........ 28
29. تائید فرضیة الوضوء بالآیة ........ 29
30. له ویده څخه سجده تلاوة اورېدل ........ 30
31. د حضرت آدم علیه السلام د جنازې لمونځ ........ 30
32. د ډېرو خلکو لپاره په جهر سره قرانکریم تلاوت کول مکروه دي ........ 31
33. په لمانځه کې په یوه او بله پښه دمه کول ........ 32
34. د وصل په حالت کې د اول الله اکبر د را د حرف توری په دوهم الله اکبر باندې ........ 32
35. موږ ته چې د دوهې سجدې امر شوی ........ 33
36. د لېوني د سجدې تلاوت حکم ........ 35
37. د تراویح ټول رکعتونه او څلور په یوه سلام سره ........ 36
38. که چېرې څوک دعا قنوت نه شي ویلای نو دغه لاندې الفاظ ویلی شي: ........ 36
39. په سخت باران کې دې جنازې لمونځ په مسجد کې کول ........ 36
40. په سفر کې سنت کول په کار دي او که نه ........ 37
41. که امام دریم رکعت ته پورته شي ........ 38
42. دا څنګه صورت دی په لمانځه کې چې څلور رکعته فرض ټول ډک دي ........ 39
43. په نفل لمونځ کې سجده سهوه ........ 39
44. په سرتور سر او خولی کې لمونځ کول ........ 41
45. د جُمعې په ورځ د لماسپښین څلور رکعته فرض لمونځ مکروه دی ........ 42
46. د ویده انسان وینښول د لمانځه په اول وخت کې واجب نه دي ........ 43
47. د اذان په دعا کې لاس پورته کول نه دي ثابت ........ 43
48. د نوې راختلې میاشتې د لیدلو په وخت کې دعا ........ 43
49. عظیم الشانه دعا ........ 44
50. د ملائکې پهره (پیره داري) کول په هغه مؤمن باندې چې د پرېوتو په وخت کې یې یو سورت قرائت کړی وي ........ 44
51. دعمرې اداکول ........ 45
52. که حاجي جماع وکړي ........ 46
53. عمره په په کوم وخت کې افضله ده ........ 47
54. نفل حج بهتره دی که دغه پیسې صدقه کول ........ 48
55. حج اکبر ........ 49
56. حج الصرورة ........ 50

57. کومه ځمکه چې معلومه نه وي چې عشري ده که خراجي څه حکم لري ........ 52
58. مهمه مسئله ........ 52
59. د خپل مال څخه د الله جل جلاله په نامه صدقه ورکول ........ 53
60. سائل (سوال کوونکی) باید محروم ونه لیږل شي ........ 54
61. د خامو غوښو صدقه کول ........ 55
62. د قبر په سر پخې خښتې اېښودل ........ 56
63. په قبر کې د مرې اېښودل ........ 56
64. د مړي په ځای کې طعام پخول ........ 56
65. اول د چا په قبر ډېوې گر ځېدلې دي؟ ........ 56
66. رفع العذاب عن المؤمن والكافر يوم الجمعة و رمضان ........ 57
67. د اسماعيل عليه السلام قبر تحت الميزاب ........ 57
68. زيارة القبور للرجال والنساء جائز ........ 59
69. کله چې جنا زه دې قبر په غاړه کېښودل شي نو خلک باید څه وکړي ........ 61
70. کوم بادشاه (حاکم) چې قرآن او شریعت نه نافذوي ........ 61
71. رَش الماء على القبر ........ 63
72. تدواي کول په څو قسمه دي ........ 64
73. که چېرې د نصف څخه زيات بدن پيدا شي اگر که بې له سر څخه وي ........ 64
74. د بعضو پوښتنو کول گناه ده! ........ 65
75. د نصوارو ، سگرېټو او چلم حکم ........ 67
76. حکم شرب الدخان (د سگرېټ او چلم څکولو حکم) ........ 67
77. د غاښ ډکول ........ 69
78. د ښځو د وېښتو د غوڅولو حکم ........ 69
79. کوم شيان نجس دي ........ 70
80. وربه خوړل ........ 71
81. اول وباء مرض په اسلام کې ........ 72
82. د ډېر عمر واله کسانو په هکله معلومات ........ 72
83. وړو اولادونو ته ريحان او اولاد ته ثمرات ویل ........ 73
84. د انسانانو عمه (د پلار خور) د خرما ونه ده ........ 74
85. اختلافي مسئله ........ 75
86. چرگ يا چرگه چې ذبح شي او بيا تو له جوش اوبو ته واچول شي د دې لپاره چې بڼکې يې زر ورژېږي ........ 75

87. بیانه (بیعانه) ........ 75
88. بولې د موږک (الفارة) طاهرې دې ضرورت دی ........ 76
89. هغه څوک چې د یوې ورځې د خوراک شی ولري سوال کول ورته روا نه دي ........ 77
90. لقمه (لمړی) ورکول بل ملګري ته سنت ده ........ 77
91. د ډوډۍ خوړلو په وخت کې خبرې کول ........ 77
92. دې ډوډۍ مسائل ........ 78
93. عقیقه، نسیکه، تطوع نفلي او مستحب ده ........ 79
94. د خطیب یا واعظ لپاره مهمه مسئله ........ 80
95. تعزیر ورکول په اور سره ........ 81
96. ساحر باید قتل شي ........ 82
97. بیت الخلا ته له تعویذ سره د داخلېدلو حکم ........ 82
98. د نوروز لمانځل د اسلام له نظره ........ 83
99. سَبُّ الدِیک (چرګ ته ښکنځل) کول منعه دي ........ 86
100. وَاکفتو اصبیانکم عند المساء (الحدیث) ........ 86
101. په مسجد کې خوراک کول د شریعت له نظره ........ 87
102. له مغمی علیه او داسې مریض چې د کُمَا په حالت کې وي ........ 87
103. صبي ممیز هلک چې په ښه او بد پوهېږي ........ 88
104. شهادة باالتسامع ........ 89
105. د مرعي (چراګاه) د ځمکې بیع روا ده ........ 90
106. که چېرې په داسې ډول سره بیع وشي ........ 92
107. لمرته په اېښودل شوو اوبو او دس کول ........ 93
108. د او داسه څخه وروسته په مندیل (دسمال) باندې لاسونه او مخ وچول ........ 94
109. دوه خویندې چې موازي یعني پیوسته پیدا شي نو د نکاح حکم یې ........ 94
110. توکیل الوکیل فی النکاح ........ 96
111. په تشهد کې په ګوته سره اشاره کول ........ 97
112. که د چا مسبحه ګوته قطعه وي نو اشاره مسنونه به په بله ګوته نه کوي ........ 98
113. روژه په کوم کال فرض شوې ده؟ ........ 98
114. محترمو مسلمانانو په دې مسئله کې د علماؤ اختلاف دی چې په کفارات د ایمانو «قسمو» کې تداخل شته او که نشته 98
115. د میراث څخه د بعضو ورثه وو محرومول ګناه ده! ........ 99
116. د میراث دعوه د نورو عامو دعوو په شان ده ........ 100

117. که دې مړي وارث غائب وي ........ 101
118. دې میراث یوه مشکله مسئله ........ 102
119. په نظر کېدل (په سترګو کېدل) ثابت دي شته ........ 104
120. وضع الجَمَاجِم (په زراعت کې د غوایه یا بل حیوان جمجمه درول) ........ 105
121. د دغه عائن (بدنظر کوونکي) د وضؤ طریقه داده ........ 106
122. اداب الجماع (هغه ادبونه چې په احادیثو سره ثابت وي) ........ 108
123. ورکول دې ذکر (دې نارینه دې خاص اندام) په خوله دې زنانه کې ........ 109
124. عزل جائز دی ........ 110
125. مسئله غلظ آلة الرجل او کثره طول الالة ........ 111
126. وهابیان څوک دي ........ 112
127. د محمدبن عبدالوهاب د کامیابی عوامل ........ 113
128. وهابیان بې ادبه او بلید خلک دي ........ 113
129. حدیث شریف د اسلام به نوم پاتې وي ، حقیقي او عملي اسلام به نه وي ........ 116
130. یارسول الله ، یاشفیع المذنبین، یادافع البلیات الفاظ ویل جائز دي او که نه: ........ 117
131. د ښځې تداوي باید ډاکتره ښځه وکړي ........ 117
132. ښځه قابله او مُغَسِّله (هغه ښځه چې مړو ښځو ته غسل ورکوي) ........ 118
133. د تداوی مختلف احکام په اختلاف د احوالو او اشخاصو ........ 120
134. په داغ لګولو باندې تداوي روا ده ........ 121
135. بعضې کورنی چې ټوله کورنی دم کوي ........ 121
136. واکسین کول د شریعت له نظره ........ 122
137. که په چا کفاره لازمه شوې وي ........ 123
138. د څو مرشدانو سره بیعت کول ........ 123
139. د وظیفو په وجه باید سړی درس پرې نه ږدي ........ 123
140. بیعت متعارفه ........ 124
141. په حلقه کې رقص کول ........ 124
142. خطاء في تاریخ وفات علي بزدوي في کتاب الحطة في الذکر الصحاح السته ........ 125
143. د فقهې شریفې دبعضو مشهورو مصنیفینو حالات (د وفات تاریخ) ........ 126
144. د بحر رائق (شرح کنز الدقائق) د مصنف د تولد او وفات تاریخ ........ 126
145. مریض ته باید د بعضو خوراکونو څخه پرهېز ورکړل شي ........ 127
146. ښکلي معلومات ........ 128

147. ښکلي معلومات ........ 128
148. آزر د ابراهيم عليه السلام پلار وو او که کاکا (عَم) ........ 129
149. ښکلي معلومات ........ 130
150. مهمه مسئله د بسم الله ........ 130
151. تنبيه ، تنبيه ........ 131
152. د حاجت د دعا غوښتل د دوه درودونو په مابين کې مقبوله ده ........ 132
153. درضاع مسئله ........ 133
154. د قرانکريم د آيتونو شمېر څومره دی ........ 134
155. د قران کريم نسخې ........ 135
156. ښکلي معلومات ........ 137
157. لس حيوانات به جنت ته له مؤمن سره داخلېږي ........ 138
158. مهمه او عجيبه مسئله ........ 138
159. که يو څوک دې بل چا منکوحه و تښتوي او بيا يې ځان ته په نکاح کړي ........ 139
160. ښکلي معلومات ........ 140
161. دې ثواب قرباني کول بل چاته دې پاره دې بل ثواب حاصلولو ........ 140
162. دې کافر قول او خبر په معاملاتو کې مقبول دی او اعتبار ور لره شته ........ 141
163. و يقبل قول الفاسق والکافر والعبد في المعاملات ........ 141
164. تحليف الشهود (شاهدانو ته قسم ورکول د قاضي له طرفه) ........ 142
165. اکل الخصيتين او الانثيين ........ 143
166. په دريو شيان کې بيړه کول په کار دي ........ 143
167. د وړو ماشومانو سره د رسول الله صلی الله علیه وسلم مينه او محبت ........ 145
168. د ماشومانو (صبيانو) وهل ........ 146
169. د اولاد وهل د ادب په لحاظ ........ 148
170. که پلار زوی د ادب په نيت وواهه ........ 150
171. نابالغ لره روژه نيول غوره دي او که په درس کې زيار ايستل ........ 151
172. په پېچ کاری او سپروم باندې روژه نه ماتېږي ........ 153
173. فضيلة ليلة نصف شعبان ........ 153
174. په حاجې قارن او متمتع باندې اضحيه او نحر دواړه واجب دي که يو ........ 155
175. ډېره زياته د توجه وړ مسئله ........ 155
176. د نوي زيږېدلي ماشوم او يا ماشومې په غوږ کې اذان او اقامت کول ........ 156

177. ډېر زيات دردوونکی ظلم ..... 157
178. استعمال لفظ الفارسي فی الحديث ..... 159
179. د تازانو خوړل حرام دي ..... 160
180. قنفد (شکونړ) خوړل حرام دي ..... 160
181. په حاضرينو باندې د جنازې لمونځ فرض کفايي دی که فرض عين ..... 160
182. نفعه اخيستل په مرهونه روانه دي سود دی يعني کومې اوسنی مروجې گروی چې دي ..... 161
183. حق الاستاذ ..... 168
184. د کافر نوکري او مزدوري ..... 176
185. په ټوپک چې کله ښکار وشي ..... 177
186. اليد اليمنی عقد الانامل د احادو طبقه خنصره بنصره او وسطی ..... 177
187. د فټبال واليبال او نورو سپورتي لوبو حکم ..... 182

## مقدمه

الحمد الله الذي اعلى منزلة المؤمنين بكريم خطابه ورفع درجة العالمين بمعاني كتابه وخص المستنبطين منهم بمزيد الاصابة وثوابه والصلوة على محمد صلی الله علیه وسلم واصحابه والسلام على ابي حنيفة و احبابه.

قدرمنو مسلمانانو له ډېره وخته مې په زړه کې وو چې په خپله مورنی ژبه مسلمانانو وروڼو ته په شرعي امورو د اګاهی لپاره يو کتاب وليکم خو داسې کس په نظر نه راتلو چې هغه يې راته په کمپيوټر باندې ترتيب کړي زما د ليکلو وروسته بياهم سره د زياتو مصروفيتونو ما په ډېر کم وخت کې دغه کتاب د مختلفو کتابونو څخه راټول کړ او د هرې خبرې سره مې د کتاب نوم صفحه او جلد ته حواله ورکړې ده يعني د هرې خبرې مأخذ مې ليکلی دی اګر چې په خپل قصد کې ډېر کلک وم او يوڅه ليکنې دری مختصرې رسالې مې ليکلې هم وې چې هغه په کتاب کې نه دي درج شوې او په مطول کتاب باندې حواشې لرم اګر چې هغه زموږ د استاذ د کتاب څخه مأخوذ دی ډېر لوی عالم وو په نامه د مولوي نصر الدين هروي چې په مدرسه دارالعلوم عربيه کراس عبدالله خان بلوچستان کې چې مشهوره مدرسه ده او زه له همدغې مدرسې څخه په ( ۱۴۲۲هـ.ق ) سنه کې فارغ شوی يم او د دغه مدرسې مهتمم او باني او شيخ الحديث د اکوړې د مدرسې د بنيان ګذار شيخ الحديث عبدالحق شاګرد وو او په دغه مشهوره مدرسه کې ډېر لوی لوی عالمان وو نو يووخت قدرمن استاد نجيب الرحمن د يوې مسئلې پوښتنه راڅخه وکړه ما ورته وليکله او بيا ده په کمپيوټرکې ډېره ښايسته ليکلې وه نو ما دغه خپل قصد ورسره شريک کړ چې زه غواړم په ديني علومو کې يو کتاب وليکم تاته به يې درلېږم او ته يې په کمپيوټر راته ليکه نو ده په ډېره خوشحالی او ورين تندي باندې زما سره په دغه خدمت کې برخه واخيسته بيا ما

دغه کتاب له مختلفو کتابونو څخه راټول کړی چې وروسته بیا دغه قدرمن استاد په خپل زیار او زحمت سره په کمپیوټر باندې ترتیب کړی او لیکلی دی الله جل جلاله دې د ده دغه عظیم خدمت په خپل دربار کې قبول کړي او ده ته یې د الله جل جلاله سبب د کامیابی د دنیا او آخرت وگرځوي، دا قصد زما سره نظر د مشکوة شریف په دغه حدیث وو : وعن ابي درداء قال سُئل رسول الله صلى الله عليه وسلم ماحدالعلم الذي اذا بلغه الرجل کان فقيها فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم من حفظ على امتي اربعين حديثا في امر دينها بعثه الله فقيها وكنت له يوم القيامة شافعاوشهيدا( مشکوة شريف ١ج ، ٣۶ص ) اذا بلغه الرجل كان فقيها يعني عالما في الاخرة و مبعوثا في زمرة العلماء وكنت له يوم القيامه شافعا بنوع من انواع الشفاعة الخاصة و شهيدا ای شافعا و حاضرا لا حواله ومزكيا لا عماله ومثنيا على اقواله ومخلصامن اهواله قال الامام النووي المراد باالحفظ ههنا نقل الاحاديث الاربعين الى المسلمين. مرقات شرح مشکوة اول جلد قدرمنو مسلمانانو که په کوم ځای کې له ما څخه غلطي شوې وي او سهوه شوی وم خصوصاً د علما کرامو څخه هیله لرم او ډېر ترې خوشحاله کېږم د هغې په اصلاح باندې اگر چې ما خپل کوشش کړی دی خو بیاهم انسان له سهوې څخه خلاص نه دی لکه دا زموږ د اسلافو علماوو مسلک هم وو لکه امام اعظم رحمه الله په ډېرو مسائلو کې دده مرگ ته په ډېرو نیژدې وختونو او کلونو کې د ډېرو مسائلو څخه رجوع کړې ده یا نور علماء لکه علامه جلال الدین سیوطي صاحب چې بعضې کتابونه چې هغه د کشر توب په دوره کې لیکلي دي او بیا یې چې په بعضې ځایونو کې وروسته تحقیقات کړي دي هغه چې په مخکې لیکنو کې غلط شوی او سهوه شوی وو بیایې په وروسته لیکنو کې صحیح کړی دی.

## تبرک یعني برکت حاصلول په آثارو د انبیاوو او صالحینو جائز دي

په مشکوة شریف کې له اسماء بنت ابي بکر رضی الله عنها څخه روایت دی : چې اسماء رضی الله عنها په خپله یوه چپنه وښودله چې د دې چپنې ټول کیفیت په دې روایت کې ښودل شوی دی یعني طیالسه کسروانیة او نور صفتونه یې ذکر شوي دي نو اسماء رضي الله عنها وویل : دا چپنه له بي بي عائشې رضي الله عنها سره وه بیا چې کله بي بي عائشه رضی الله عنها وفات شوه نوما واخیسته او دا چپنه مبارکه د نبي علیه السلام وه نو بي بي اسماء رضی الله عنها وایي چې موږ به دا چپنه پرېمینځله او دا اوبه به مویې په مریضانو چښلې او د الله جل جلاله څخه به مو شفا پرې طلبوله ( رواه مسلم ، مشکوة شریف ۳۷۴ص ، کتاب الباس). نو مسلمانانو د نېکانو او صالحینو په آثارو لکه : چادر ، پټکي ، لکنړه و غیره سره برکت حاصلول او طلب د شفا پرې له الله جل جلاله څخه غوښتل جائز دي دغه رنګه احادیث ډېر راغلي دي لکه په نورو احادیثو کې راغلي دي صحابه کرامو رضی الله عنهم اجمعین به د نبي علیه السلام د اوداسه اوبه چې د ده مبارک له اندامونو څخه به تویېدلې دوی به په ځانونو موښلې او تویولې او داسې نور ډېرمثالونه یې په همدې کتاب او الفقه الاسلامي کې ذکر شوي دي.

## د نبي علیه السلام قبر مبارک وسیله ګرځول الله جل جلاله ته

د مشکوة شریف په ( ۵۴۵ ص ) کې په یو روایت کې ذکرشوي دي : په مدینه شریفه کې سخته قحطي راغله بارانونه نه کېدل نو د مدینې شریفې خلک بي بي عائشې رضی الله عنها ته ورغلل ، بي بي عائشې رضی الله عنها ورته وویل : ورشی د نبي علیه السلام قبر ته چت یې سوری کړی او دُورُځه په کې وکړی چې هرکله د آسمان سره د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د قبر مبارک ملاقات ( لیدل )

راشي نو آسمان به د الله جل جلاله په اراده او د نبي كريم صلى الله عليه وسلم د قبر مبارك په بركت سره باران وكړي نو دوى بيا همدغه كار وكړ او الله جل جلاله داسې بارانونه وكړل ، كال داسې آباد شو ، داسې دښتې شنې شوې او اوښان داسې چاغ شول چې بعضې به د ډېر چاغوالي او موړ والي څخه وچاودېدل نو دا كال په عام الفتق ( د چاودلو په كال ) سره ونومول شو نو د دې څخه دا معلومه شوه چې بي بي عائشې رضى الله عنها د نبي عليه الصلوة والسلام قبر مبارك الله جل جلاله ته وسيله و گرزولو. په همدغه صفحه كې په بل روايت كې داسې واقعه ذكرده : سفينه مولى ( آزاد كړل شوى صحابي ) د نبي عليه الصلوة والسلام د روم په وطن كې د صحابه كرامو څخه ورک شو يعني د لښكر لار ترې غلطه شوه او يا بندي وو ترې وتښتېد ، خو يوازې په خپلو ملگرو او قافله پسې روان وو نو ناڅاپه له زمري سره مخامخ شو ، زمري ته يې وويل زه مولى د رسوالله صلى الله عليه وسلم يم او خپله قصه يې زمري ته واو روله يعني صحابي د رسول الله صلى الله عليه وسلم نوم ورته ياد كړ چې زمرى مې ونه خوري او مړ مې نه كړي همدا د رسول الله صلى الله عليه وسلم د نامه بركت وو د هغې د يا دولو سره زمري د تابعدارى لكۍ وښوروله لكه سپۍ چې خپل څښتن ته لكۍ ښوروي نو د ده محافظت اوپيره يې شروع كړه په لار ورسره روان شو چې د هر طرف نه به د څه شي غږ شو زمري به هغه طرف ته ټوپ كړل چې هسې نه كوم بل شى په دغه صحابي حمله وكړي ، فكر وكړوى مسلمانانو د رسول الله صلى الله عليه وسلم د نامه په بركت سره د وژونكي حيوان څخه ساتونكى حيوان جوړ شو ترڅويې ځان ملگروته ورساوه. ځكه نو صاحب د قصيدې بردې شعر ويلى چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم لوړ شان ترې معلومېږي. شعر : ومن تكن برسول الله نصرته – ان تلقه الاسد في اجامها تجم. وايي هغه چا چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره كومک او نصرت

کړی وي که چېرې د زمري سره مخامخ شي نو د زمري په خوله کې هم قيضې لوېږي او دخوړلو څخه يې تابع کېږي لکه د مدينې منورې اصحاب چې انصار وو د نبي کريم صلی الله علیه وسلم او مهاجرو سره يې راز راز کومکونه وکړل. (رواه الدارمي ، مشکوة شريف ۵۴۵ص).

## په کوم شي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم راتګ کړی وي ويې کړی او له څه شي څخه چې يې منع کړي يی مه يې کوئ

مَااَتَاکُمُ الرّسُوْلُ فَخُذُوْهُ وَمَانَهَاکُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْ الاية پورته عنوان د دې آيت شريف معنی ده. د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم معجزه ده او همدارنګه هر هغه څوک چې د اسلام د مقدس دين څخه مرتد شي د هغه انجام به داسې وي لکه په د غه روايت کې : د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دی : يوسړي به نبي کريم صلی الله علیه وسلم ته ليکل کول بيا مرتد شو د اسلام څخه او مشرکينو ته ورغی ، مشرکينو ته به يې ويل : محمد صلی الله علیه وسلم په هېڅ نه پوهېږي فقط زه يوڅه ورته ليکم. بعضې علما وايي چې دا مخکې نصراني وو بيا يې اسلام راووړ وروسته بيا بېرته نصراني شو. حضرت محمد صلی الله علیه وسلم به ويل : کله چې داسړی مړ شي نو ځمکه به يې نه قبلوي او را غورځوي به يې. حضرت انس رضي الله عنه وايي : ماته طلحه رضی الله عنه خبر راکړ چې زه هغه وطن ته ورغلم چې دغه سړی پکې مړ وو او ومې ليدلو چې ځمکې را غورځولی وو نو ابو طلحه د هغه خلکو څخه پوښتنه وکړه چې دا ولې هغه خلکو وويل موږ ډېر کرته خښ کړ خو ځمکې به بېرته را وغورځاوه. په مرقات شرح مشکوة شريف کې وايي : هغه خلکو به په لومړيو وختونو کې ويل: دا د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د ملګرو کاردی ، بيايې د اندازې څخه ډېر زيات ژور قبر ورته وکيندلو خو بيا به يې هم

را وغور ځاوه ، آخر یې همداسې پربښود او ویې ویل : دا د انسانانو کار نه دی. ( مشکوة شریف ۵۳۵ – ۵۳۶ ص ). محترمو مسلمانانو فکر وکړی څوک چې د اسلام څخه مرتد کېږي نو د داسې انجام سره مخامخ کېږي او هغه څوک چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم مخالفت کوي او خبرې ورپسې کوي الله جل جلاله به یې داسې شرموي. په بل ځای کې د سلمه بن اکوع رضی الله عنه څخه روایت دی: یوه سړي د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په حضور کې په چپ لاس سره خوراک کاوه ، نو حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ورته وویل: په ښي لاس سره خوراک کوه ، ده ورته وویل: قدرت مې نشته دا خبره یې د کبر او تکبر له وجهې وکړه او کوم عذر یې نه درلود نو حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ورته ښېرا وکړه چې قدرت پرې پیدا نه کړې ( الله جل جلاله د قدرت نه درکوي ) په ښي لاس ، بیا یې ښی لاس وچ شو او خولې ته یې پورته نه کړ ، تکبر یې وکړ دې پیغمبر صلی الله علیه وسلم خبره یې ونه منله نو الله جل جلاله دا جزا ورکړه. محترمو مسلمانانو د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم سنتو ته په درنه سترګه ګوری ، عمل پرې کوی او که څوک د سنتو مخالفت کوي او په سپکه ستر ګه ورته ګوري نو الله جل جلاله به داسې سزا او جزا ورکړي لکه په دې پورته حدیث کې چې ذکرشول . الله جل جلاله په قران کریم کې فرمایلي دي : اطیعوالله و اطیعوالرسول: ( الله جل جلاله وایي: زما او زما درسول اطاعت وکړی ). په سنتو طریقو کې ډېر حکمتونه شته د نورالایضاح په طحطاوي کې وایي: څوک چې بدرفت ( تشناب ) ته ځي نو دې داخلېدو په وخت کې د دا دعا وایي: (بسم الله اعوذ باالله من الخبث والخبائث ). د دې دعا په برکت سره د قضا حاجت په وخت کې جنات یعني پېریان موږ نهویني زموږ ستر عورت په برکت د دې دعا سره راځي او د دوی دسترګو نظر په دغه وخت کې ختم شي.

## د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم معجزې

په مشکوة شريف باب المعجزات کې او په مرقات ( ۱۱ ج ، ۷۱ ص ) رشيديه چاپ کې حديث شريف دی : عن ابي هريرة رضی الله عنه قال جاء ذئب الی قطعة غنم راعيها معها الحديث : حضرت ابوهريره رضی الله عنه ويلي دي يولېوه راغی ، مېږه يې په خوله کې واخيسته شپون ورپسې شو او مېږه يې ځنې خلاصه کړه ، لېوه يوه لوړ ځای ته وخوت ، په دوه پښو کېناست او دوه پښې يې ودرولې ، لکی يې د همغه دوو پښو په مابين کې ورکړه ، خبرې يې شروع کړې داسې يې ويل: ما هغه رزق واخيست چې الله جل جلا له ماته رزق گر ځولی وو ، تا را څخه خلاص کړ ، شپون په تعجب سره قسم وکړ چې لېوه خبرې کوي ما هېڅ کله داسې ورځ نه وه ليدلې چې لېوه خبرې کوي يعني زه تعجب کوم داسې تعجب چې لېوه خبرې کوي لېوه وويل: تردې ډېره د تعجب خبره داده: د وو غرونو په مابين او د خرماوو د باغونو په مېنځ کې چې مدينه شريفه ده يو سړی دی چې تاسوته مخکني او وروستني راروان خبرونه درکوي چې نبي عليه الصلوة والسلام يې مطلب وو دغه شپون يهودی وو ، راغی نبي عليه الصلوة والسلام ته يې دا قيصه وکړه او ايمان يې راوړ. نبي عليه الصلوة والسلام د ده د دغه قيصې تصديق وکړ او ورته ويې ويل: دا قِسم علامې د علاماتو د قيامت څخه دي ، او ويل يې يو څوک به د کوره ووزي او کورته به نه وي راغلی نو لکڼه او پايزار به يې د کور د بڼه او بد څخه خبروي چې او سنيو آلاتو تلېفون او غيره ته اشاره ده.

## د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دوهمه معجزه

په مرقات چې د مشکوة شريف شرحه ده په ( ۱۱ ج ، ۶۹ ص ) اسماء الرجال کې ليکلي دي : د عکاشه چې يوبدري صحابي دی د بدر په غزاکې توره

ماته شوه ، حضرت محمد صلی الله علیه وسلم یو د عود لرگی او یا عُرجون ( دخرما وچ لرگی ) ورکړ الله جل جلاله یې هغه وچ لرگی په لاس کې توره وگرزاوه او دی مبارک د لوړې درجې صحابه وو څخه وو چې د (۴۵) کلونو په عمر د ابوبکر صدیق رضی الله عنه د خلافت په وخت کې وفات شوی دی له ده مبارک څخه ابوهریره او ابن عباس رضی الله عنهما د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دا معجزه ذکر کړېده : ابوهریره رضی الله عنه وایي طُفَیْل بن عمرو الدوسي حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته راغی ، حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ، طفیل بېرته د هغه خپل قوم ته د اسلام د دعوت لپاره ولېږلو نو طفیل حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته وویل: ماته یوه علامه زما د حق والي وگرځوه چې دوی خو ووایي چې په حقه دعوت گردی او د دوی د ایمان راوړلو سبب شي ، حضرت محمد صلی الله علیه وسلم طفیل ته دعا وکړه په داسې ډول سره ( اې الله جل جلاله ته دده په تندي کې رڼا پیداکړې ) نو الله جل جلاله دده د سترگو په مابین کې نور یعني رڼا پیداکړه بیا طفیل له حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څخه سوال وکړ ، یارسول الله هسې نه چې دغه رڼا زما قوم زما لپاره مُثْله یعني بدرنگي و بولي نو بیایې الله جل جلاله هغه رڼا عصا ( لکڼې ) ته انتقال کړه او په تیاره شپه کې به یې ورته رڼا کوله. مرقات په ( ۱۵۰ص ، ۱۱ج )

## د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دریمه معجزه

له ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی ، هغه له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه داسې روایت کړی دی : حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ویل : یوه ورځ یو سړي یوه بقره (غوا) روانه کړې وه کله چې دغه سړی ستړی شو نو وربandې سپور شو کله چې سپور شو نو بقرې خبرې شروع کړې او ویل یې : موږ غواگانې او غوایان الله جل جلاله د سوارلۍ لپاره نه یو پیداکړي بلکې الله جل جلاله د ځمکې اړولو لپاره پیداکړي یو، ملا علي قاري صاحب وایي چې په دغه

حديث سره په غوايانو سپړېدل روانه دي او نه په نو روحيواناتو هغه کار کول روادي چې الله جل جلاله د هغه لپاره نه دي پيداکړي لکه په خرو باندې قلبه ( يوېې ) کول يعني د ځمکې اړول ، حاضرينو خلکو ويل : سبحان الله بقره خبرې کوي حضرت محمد صلی الله علیه وسلم وويل : که څه هم خلک دا تعجب بولي خو زه يې تعجب نه بولم ، زه ابوبکر صديق او عمر رضی الله عنهما خو په الله جل جلاله ايمان لرو ، کله چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دغه خبرې کولې نو حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه په دې وخت کې موجود نه وو.

محترمو مسلمانانو په تفسير المظهري کې د سورة بقره په يوروايت کې ذکر شوي دي : هغه هلک چې هغه بقره راوستله نو ډېرې خبرې يې د هغه هلک سره کړې دي بل ځای الله جل جلاله په سورة يس کې فرمايي : د قيامت په ورځ به د گنهگارانو او کفارو په خولو باندې مهرونه ولگول شي او د دوی په لاسونو به خبرې وکړو او د دوی پښې به شاهدي ادا کوي.

## د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څلورمه معجزه

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دی : حضرت محمد صلی الله علیه وسلم به يوې تنې ( ببخ د خرما دونې ) ته ولاړ وو او خطبه به يې ويله ، وعظ به يې کولو چې دغه د ونې تنه يوه ستنه له ستنو د مسجد څخه وه ، کله چې منبر جوړشو نبي کريم صلی الله علیه وسلم راغی د خطبې او وعظ لپاره په منبر ودرېد ، هغه د خرما تنه او ونه چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم به ورته درېدو چيغې يې کړې ،داسې چيغې يې ووهلې ، نيژدې وه چې دوې او يا ډېرې ټوټې شي نو نبي کريم صلی الله علیه وسلم د منبر څخه راکوز شو ، دغه د خرما د ونې څخه جوړې شوې ستنې ته ورغی ، په غېږ کې يې ونيوله ، ځان ته يې راټينگه کړه غاړه يې د تسلې

لپاره ځني تاو کړه نبي کريم صلی الله علیه وسلم داسې کراروله لکه کوچنی ماشوم چې کرارول کېږي او ورو ورو يې ژړا ودرېږي تردې چې د خرما د تنې څخه جوړه شوې ستنه په کراره شوه. نبي کريم صلی الله علیه وسلم وويل : ځکه يې ژړل ما به چې کله د الله جل جلاله نوم او آيتونه ويل نو دې به هغه دنيژدې څخه اورېدل يعني د دې ذکر او ذاکر په جداکېدو چې ذاکر نبي کريم صلی الله علیه وسلم وو دونې تنې چې اوس ستنې وه ژړل. ملا علي قاري صاحب وايي : په فراق دهغه اذکارو او ذاکر چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم دی د دې دواړو په فراق يې وژړل.

## د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم پنځمه معجزه

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دی : د مدينې اهل مسلمانان يعني صحابه يو وخت په دې باندې ووېرېدل چې دښمن راغی نو نبي کريم صلی الله علیه وسلم په آس سپور شو چې دا آس د ابوطلحه په نامه د يوصحابي وو دغه آس ډېر سست وو او نيږدې نيږ دې قدمونه يې ايښودل نور صحابه په ډېرو تېزو آسونو سپاره شول کله چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم راغی او د ده مبارک آس تر ټولو د مخه راورسېد او ويل يې : داسې تېز آس دی لکه بحر او پس له دغې پېښې بيا د دغه آس سره هېڅ مقابله ونه کړای شوه. (مرقات شرحه د مشکوة ۴۶ ص ، ۱۱ج ).

په مرقات شرح مشکوة کې علي رضی الله عنه روايت کوي : زه يوه ورځ د نبي کريم صلی الله علیه وسلم سره په مکه معظمه کې داسې اطرافو د مکې ته ووتلم هره تيږه او هره ونه به چې په مخه راتله نو ويل به يې السلام عليک يا رسول الله صلی الله علیه وسلم. (رواه الترمذي والدارمي ۶۵ص ۱۱ج ).

## د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم شپږمه معجزه

د ابي حُمَیْد ساعدي څخه روایت دی وایي: موږ صحابه له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د تبوک غزا ته تللو ، کله چې وادي قری ته راغلو چې دا یومشهور ځای دی په دې ځای کې د یوې ښځې حدیقه (باغچه) وه چې دېوال ترې تاو وو نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم وویل : تاسو د دغه باغچې خرماوې څومره بولی یا بله هره مېوه چې وه نو صحابه وو چا څومره او چا څومره اندازه ښودلې نبي کریم صلی الله علیه وسلم دغې ښځې ته وویل : ټیک لس وسقه دي دغه عدد درسره یاد ساته ، څوموږ بېرته راځو چې څومره کېږي کله چې بېرته د تبوک څخه راغلو نبي کریم صلی الله علیه وسلم د هغه ښځې څخه پوښتنه وکړه څومره شوې هغه ښځې وویل لس وسقه. (مرقات ۱۱ج ، ۶۰ص).

بله معجزه په همدې حدیث کې ده وایي کله چې تبوک ته ورسېدو او هلته مو واړول نبي کریم صلی الله علیه وسلم وویل : نن شپه به سخت باد او طوفان ولګي اوښان ښه کلک وتړی ګونډه یې کړی ، څوک لاړ نه شی او ونه درېږی ځکه چې دا باد به درته ضرر ورسوي نو په همغه رقم باد ولګېدا په دې وخت کې یو نفر درېدلی وو ، ډېر لېرې د جبل الطی په غرونو کې چې ډېر لېرې دي هلته یې غورځولی وو. (مرقات ۱۱ج ، ۶۰ص).

## د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم لوړ مقام او تنها خصوصیت په ټولو پیغمبرانو او مسلمه امتونو کې:

امام جعفر صادق د خپل پلار امام محمد باقر څخه (چې دغه جعفر صادق د امام اعظم رحمة الله علیه استاد هم دی) روایت کوي : یو سړی د قریشو زما په پلار علي بن الحسین بن علي رضی الله عنه باندې ورداخل شو او ورته ویې ویل :

زه یو حدیث د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه درته بیان نه کړم ، ده ورته وویل ولې نه بیان یې کړه له ابي القاسم څخه ، علي ابن الحسین داسې حدیث بیان کړ: کله چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم مریض شو جبرائیل علیه السلام ورته راغی او ورته ویې ویل : یامحمد صلی الله علیه وسلم زه الله جل جلاله تاته رالیږلی یم ستا د عزت ، لوړوالي او لویې رتبې درلودلو په خاطر په داسې حال کې چې دغه تکریم او تشریف یوازې ستا خصوصیت دی یعني په داسې شي کې پوښتنه درڅخه کوي چې الله جل جلاله په هغه شي ترتا ښه عالم دی نو الله جل جلاله وایي : ته څنګه یې او ستا حال څنګه دی ، نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورته وویل : غمګین یم ، اندوه ګین یم شیخ عبدالحق دهلوي صاحب وایي چې کېدی شي دغه غم یې د امت او دین خپل سره وو چې وروسته به څه کېږي کله چې دوهمه ورځ دوهم وار جبرائیل علیه السلام ورته راغی نو همغه د اولې ورځې جواب یې ورکړ ، کله چې په دریمه ورځ جبرائیل علیه السلام ورته راغی نو بیا ده مبارک ورته د همغې اولې ورځې جواب ورکړ خو په دغه ورځ یوه بله ملائکه هم ورسره وه چې نوم یې اسماعیل وو شیخ عبدالحق دهلوي وایي : دغه ملائکه د آسمان دملائکه وو مشره وه او موکله په یولک ملائکو وه ، د دغه یولک ملائکه وو څخه د هرې یوې ته امر لاندې یولک ، یولک ملائکې وې ، دغه اسماعیل ملائکې د داخلېدو اجازه وغوښته نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته ، نبي کریم صلی الله علیه وسلم د جبرائیل علیه السلام څخه د اسماعیل ملائکې پوښتنه وکړه ، جبرائیل علیه السلام ددې صفت ورته بیان کړ چې داسې ملائکه او داسې ملائکه ده بیا جبرائیل علیه السلام وویل : دا د ملک الموت د داخلېدو اجازه غواړي په تا باندې او تراوسه پورې چې مخکې څومره دنیا تېره شوې له چا څخه یې اجازه نه ده غوښتې او نه به یې وروسته وغواړي ، نه دې مخکنیو پیغمبرانو څخه او نه د وروستنیو او

لیاؤ څخه. الله جل جلاله دغه مقام یوازې تاته درکړی دی ، نبي کریم صلی الله علیه وسلم جبرائیل علیه السلام ته وویل : اجازه ورکړه ، جبرائیل علیه السلام اجازه ورکړه او ملک الموت نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته وویل : الله جل جلاله زه رالیږلی یم که ته غواړې چې روح دې واخلم وابه یې خلم او که وایې چې پرې ایږده یعني مه یې اخله نو پرې به یې ږدم یعني نه به یې اخلم ، نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورته وویل : دا کار کوې ، عزرائیل علیه السلام ورته وویل: په همدې امر شوی یم خو ستا په اطاعت امر شوی یم چې ستا روح ستا په امر واخلم ، نبي کریم صلی الله علیه وسلم جبرائیل علیه السلام ته وکتل چې څه وایي عزرائیل او څه به کوي ، په دې وخت کې جبرائیل علیه السلام نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته وویل : اِنّ الله قَدْ اِشْتَاقَ الی لقائک چې الله جل جلاله ستا د دیدار غوښتونکی او آرزومند دی نو فقبض روحه یعني عزرائیل علیه السلام یې روح مبارک قبض کړ. وروسته په دغه حدیث شریف کې نورې خبرې هم ذکر دي چې خضر علیه السلام راغلی دی او خبرې یې کړې دي. الحدیث . او امام جلال الدین سیوطي رحمه الله په خپل یو کتاب الحبائک في اخبار الملائک کې د بیهقي په روایت کې ویلي دي : داسماعیل ملائکې سره اویازره ( ۷۰۰۰۰ ) ملائکې دي چې بیاد دې هرې یوې سره بیا اویازره نورې ملائکې وې نو بنا په اول روایت سل میلیار ده او دری ملائکه وو چې هغه دری یې جبرائیل ، عزرائیل او اسماعیل وو.

100000 X 100000+3 = 10000000003

او په بل روایت

70000 X 70000 + 3 = 4900000003

مسلمانانو وگوری لوړې منزلې او مرتبې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته باید مینه ورسره ولرو او په سنتو طریقو یې عمل وکړو. دغه حدیث مولانا علي قاري صاحب ښه ثابت بللی دی.

## اَشَدُّ الْمَصَائِبِ مُصِيبَةٌ وفات رسول الله صلی الله علیه وسلم

محترمو مسلمانانو کتابونه لیکي تر ټولو لوی مصیبت د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د وفات مصیبت وو داسې مصیبت چې نه له دې څخه مخکې تېرشوی وو او نه به وروسته تېرشي ، هغه خاوره مبارکه چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم بدن مبارک او یا اړخ مبارک ورسره لګېدلی دی تر عرش عظیم او کعبه شریفه لوړ مقام او بهتري لري او همدارنګه هغه اوبه چې په احادیثو کې ثابتې دي او په معجزه د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم سره زیاتې شوې وي د الله جل جلاله په نز د حوض کوثر تر اوبو او د زمزم تر اوبو بهتره دي. د دې خبرو هغه اوله خبره دمصیبت په رابطه په طحطاوي علی مراقي الفلاح شرح نور الایضاح کې ذکر ده او دغه دوه نورې خبرې مولانا عبدالحی لکنوي په السعایة علی الهدایة الاخیرین کې لیکلي دي او په مرقات شرح مشکوة شریف په ( ۲ج ، ۴۴۵ص ) کې لیکلي دي چې روایت د ابي جحیفه دی وایي : ما رسول الله صلی الله علیه وسلم د مکې معظمې په وادي ابطح کې په یوه خېمه کې ولیدا چې د څرمنې څخه جوړه شوې وه او حضرت بلال رضی الله عنه مې ولید چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د اوداسه په هغه پاتې شوې اوبو یا هغه اوبو چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د اندامو مبارکو څخه جداشوې وې بلال صاحب اخیستې وې او صحابه کرامو مسابقه کوله هر یوه کوښښ کولو هغه اوبه یې ترلاسه کولې او په مخونو یې موښلې د تبرک حاصلولولپاره.

## فضلات د نبي کريم صلى الله عليه وسلم طاهر وو ، ويني مبارکې او بولې يې صحابه کرامو څښلې دي (فتاوى تنقيح حامديه علامه شامي)

دم ( ويني ) وقيح و قيئ وغائط وبول و مذي و ودي طاهرة. په الفقه الاسلامي وادلته مکتبه رشيديه ( ۲ج ، ۳۰۴ص ) حاشيې کې ليکلي دي : برکة الحبشة په نامه باندې يوتن د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم بَولې ( متيازې ) څښلې دي نبي کريم صلى الله عليه وسلم ورته وويلې چې ستا ګېډې ته به د دوزخ اور ونه رسېږي. صححه الدار القطني او د اباطيبه په نامه يوکس د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د حجامت ويني څښلې وې نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم ورته ويلي وو د چا د ويني سره چې زما وينه ګډه شي هغه به د دوزخ اور مسحه نه کړي. مرقات ( ۲ج ، ۴۴۵ص). حجامت ورونو دې ته ويل کېږي چې د قمري مياشتو په تاقو ورځو کې ( ۱۷ ، ۱۹ ، ۲۱ ، ۲۳ ، ۲۵ ، ۲۷ ، ۲۹ ) کې ښکر يا کدو ولګوي په هغه چا باندې چې هغه يې پوه او متخصص وي دا ډېره ګټه رسوي او نبي کريم صلى الله عليه وسلم هم دا کار کړی دی چې په سرورانه ( زنګون ) د اوږو په مابين کې لګول کېږي ، دا کار صحابه کرامو هم کړی دی ، زموږ او تاسو لپاره هم مسنونه طريقه ده او دا ابوطيبه صحابي دی او د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د حجامت وينه يې څښلې ده په نورو احاديثو کې نور هم ډېر داسې واقعات شته دي.

## خصوصية النبي کريم صلى الله عليه وسلم وعلي رضى الله عنه في مکثهما فی المسجد

په مسجد کې د جنابت په حال کې کې تنها نبي کريم صلى الله عليه وسلم او علي رضى الله عنه څنډ کولی شوی ( طحطاوي ۱۱۵ص ).

که چېرې جنب سهواً مسجد ته ننوتلو او فوراً بېرته ووتلو یا که چېرې په مسجد کې جنب شو په همغه وخت کې که چېرې د اوبو په استعمال باندې قادر نه وو نو سم دلاسه به تیمم وهي د وتلو لپاره به تیمم وهي او که په مسجد کې د ننه یو طرف ته تشناب ( د اوداسه ) ځای وو نو بیابه اودس کوي خو که په وتلو باندې قادر نه وو او د اوداسه ځای هم نه وو خو ضرورت یې وو چې دلته وخت تېرکړي نوبیا به هم تیمم وهي.

په خوب کې د انبیاوو علیه السلام د اوداسه ماتوالی نه وو یعني د احتلام څخه معصوم وو ، الله جل جلاله د احتلام ( د خوب په حالت کې جنابت پېښېدلو ) څخه معصوم ساتلي وو ځکه دا احتلام شیطاني وي او شیاطینو ته الله جل جلاله په انبیاوو علیهم السلام باندې تسلط نه دی ورکړی ، له دې کبله جلال الدین سیوطي په خصائص کبری کې ویلي : د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم قرین ( شیطان ) ایمان راوړی دی ځکه شیاطین ډېر دي چې د ټولو رئیس ابلیس علیه اللعنه دی او دا خبره د احادیثو څخه هم ثابته ده.

په پیغمبرانو علیهم السلام باندې زکاة لازم نه وو. ( طحطاوي ۵۸۷ ص ).

پیغمبران د تثاوب ( ارږمي ) څخه محفوظ وو. ( طحطاوي ۲۸۸ص ).

## د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم نومونه

د طحطاوي په ( ۷ ص ) کې ذکر شوي چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ( ۱۰۰۰ ) زر نومونه دي لکه د الله جل جلاله نومونه چې ( ۱۰۰۰ ) دي او د همدې کتاب په همدغه صفحه کې ذکر دي : د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د پیدایښت څخه مخکې په دغه دوه نومونه چې محمد صلی الله علیه وسلم او احمد صلی الله علیه وسلم دي هېڅوک نه دي نومول شوي یعني الله جل جلاله دغه دوه نومونه

خاص د ده لپاره ساتلي دي ، یو ضعیف قول داسې راغلی دی ، کله چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د پیدا ینښت زمانه رانیژدې شوه بعضو خلکو دا نومونه په خپلو او لادونو ایښودل ځکه چې په تورات او نورو کتابونو کې یې وعده شوې وه ، چې آخري پیغمبر به زه په دغه نومونو باندې پیداکوم نو دوی په دې طمع باندې په خپلو او لادونو باندې دغه نومونه ایښودل ،چې هغه زموږ اولاد شي لکن دا خبره ضعیفه ده عجیبه هم داده چې دا نومونه دې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د پیدا ینښت څخه په مخکې کتابونو کې هم وو خو چا نه دي ایښي ځکه مخکې ذکر شول چې الله جل جلاله ساتل او دا خبره چې د الله جل جلاله او حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ( ۱۰۰۰ ) ، ( ۱۰۰۰ ) زر زر نومونه دي مولانا علي قاري صاحب په شرح د مشکوة مرقات کې هم لیکلې ده.

یو حدیث شریف دی په اشعة اللمعات شرح مشکوة کې :قال رسول الله صلی الله علیه وسلم : ان الله سَمّانِيْ فی القران علی سبعة اسماء : محمد ، احمد ، طه ، یس ، مزمل ، مدثر و عبدالله صلی الله علیه وسلم یعني په قرانکریم الله جل جلاله په دغه نومونو سره یاد کړی دی.

په رشید البیان کې چې کومه د سایه اصلي اندازه ښودله شوې ده هلته په بیتونو کې دغه الفاظ ذکر شوي دي چې لاندې به و ښودل شي چې دا الفاظ د میاشتو نومونه دي:

| حمل | ثور | جوزا | سرطان | اسد | سنبله | میزان | عقرب | قوس | جدي | دلوه | حوت |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ویساک | جیټ | اهاړ | ساونړ | بهادر | آسو | کُتک | مگهر | پوه | ماه | پگنړ | چیتر |

په رد المحتار او طحطاوي شريف په ( ۴۱۰ ) صفحه کې ذکر شوي دي چې عربو به دې هفتې د اوو ورځو نومونه داسې يادول يعني د اسلام څخه مخکې:

| شيار | اول | آهُون | جبار | دبار | مؤنس | عُرُوبه |
|---|---|---|---|---|---|---|
| السبت | الاحد | الاثنين | الثلاثاء | الاربعاء | الخميس | جمعه |
| شنبه | يکشنبه | دوشنبه | سه شنبه | چهارشنبه | پنجشنبه | جمعه |

که چا د جن ( پيري ) څخه سجده تلاوت واورېده نو سجده پرې واجبېږي. طحطاوي ( ۳۹۴ ص ).

## د صالحينو قبرونه معلومول

علامه شامي صاحب وېلي : د اولياوو او صالحينو په قبرونو باندې قُبې ، پردې او ثياب اچول جائز دي په دې خاطر چې عامه خلکو ته دا معلومه شي چې تعظيم او احترام يې وکړي ځکه دا صاحب د لويې مرتبې دی ترڅو يې څوک احتقار ونه کړي ، او بل د غافلينو او زائرينو د خشوع ، جلب او ادب لپاره ځکه د اکثره خلکو زړونه نافره وي د اولياءالله رحمهم الله عليهم په اړه کوم چې مدفون دي په دغه قبرونو کې خو انما الاعمال باالنيات او داخبره په تقريرات رافعي کې هغه عالم ذکر کړېده کوم چې په رد المحتار باندې ليکنه کړېده. يوه بله د توجه وړ مسئله داده چې علامه عبدالحی لکنوي صاحب په مجموعة الفتاوی کې ليکلي ده : د مړي په قبر او چهار پايي باندې داسې روجايي يا پرده اچول چې قران عظيم الشان پرې ليکل شوي وي روا نه دي بايد پرې وانه چول شي ځکه د داسې پردې اچول په مړي باندې د قران بې عزتي ده

او ناروا دي ، همدارنگه کله چې یو مسلمان وفات شي او غسل یې نه وي ورکړی تلاوت کول پرې ښه خبره نه ده او باید پس له غسل څخه هم داسې ځای کښېنه نې چې قران لاندې ایښی وي او مړی په کټ لوړ ایښی وي.

## رابطا راسه بخرقة (الحدیث)

د ابو سعید خدري رضی الله عنه څخه روایت دی : یوه ورځ په موږ باندې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په هغه مرض کې چې بیا ورڅخه وفات شو له حجرې مبارکې څخه راووت ، سر مبارک یې په یوه ټوټه باندې تړلی وو منبر طرف ته یې قصد وکړ او په منبر باندې ودرېده او بیا کېناسته موږ شاوخوا د منبر ورته کېناستو ده مبارک و فرمایل : زما قسم په هغه ذات دی چې زما نفس د ده په لاس کې دی زه له دغه ځایه حوض کوثر ته گورم بیایې وویل : یوه بنده ته دنیا او د دنیا زینت پېش کړل شو ده آخرت مختاره کړ یعني د ژوندي پاتې کېدو او مړه کېدو اختیار ورکړ شو نو ده آخرت غوره کړ ، د ده مبارک په اصلي مطلب باندې هېڅوک پوه نه شول فقط ابوبکر صدیق رضی الله عنه پرې پوه شو او اوښکې یې تویې کړې ویې ژړل او ورته ویې ویل : موږ پلرونه ، مورانې ، نفسونه او مالونه تر تا فدیه کوو قربانوو یې یارسول الله صلی الله علیه وسلم بیادی مبارک منبر ته ونه خوت دا د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم آخري ختل وو منبر ته نو د سر تړل د درد په وخت کې شته دي ځکه نبي کریم صلی الله علیه وسلم سرتړلی وو او سختې تبې یې تېرې کړې وې. د مشکوة شریف په ( ۱۰۲ص ) کې لیکل شوي دي : کله چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم په هغه مرض باندې مریض وو چې بیا په کې وفات شو نو یوه ورځ په داسې حال کې راووت چې د دوه کسه صحابه کرامو په اوږو باندې یې لاسونه نیولي وو او ځان یې پرې اچولی وو ، د پښو گوتو یې په ځمکه کې خطونه ایستل یعني داسې ضعیف وو چې په پښو

مبارکو کې يې هېڅ طاقت نه وو ، صحابه کرامو د دغه ضعف په حالت کې راووست ، په ناسته يې د لمانځه امامت وکړ ، ابوبکر رضی الله عنه دحضرت محمد صلی الله علیه وسلم د لمانځه تکبیرونه په زوره خلکو ته رسول قدرمنو مسلمانانو دغه حالت په انبیاوو کرامو رضی الله عنهم هم راغلی دی او په موږ او تاسو باندې هم را روان دی نو نېک عملونه کوی او له گناهونو څخه ځان ساتی.
( مشکوة شریف ۵۴۶-۵۴۸ص )

## د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم خط حضرت معاذ رضی الله عنه ته

بسم الله الرحمن الرحیم من محمد الرسول الی مُعاذ بن جبل سلام علیک فانی احمد الیک الله الذي لا اِله الاهُو اما بعد فاعظم الله لک الاجر و الهمک الصبر ورزقنا ایاک و الیک الشکر فان انفسنا و اموالنا و اهلینا و اولادنامن مواهب الله عزوجل الهَیِّنه و عواریه المستودعه متع بها الی اجل معدود ویقبضها لوقت معلوم ثم افترض علینا الشکر اذا اعطی والصبر اذا ابتلی فکان ابنک من مواهب الله الهینه مبارک وعوایه المستودعة متع به فی غبطة وسرور و قبضه منک باجر کثیر الصلوة والرحمة و الهدی ان احست فاصبر ولا یحبط جزعک اجرک فتندم و اعلم ان الجزع لایرد شیئاولا یدفع حزنا وماهو نازل فکان والسلام رواه الحاکم وابن مردویه عن معاذ بن جبل. لنډه معنی : د حضرت معاذ رضی الله عنه یو زوی وفات شوی وو او په دغه وخت کې دی د یمن والي وو له طرفه د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم نو دغه خط یې د فاتحې او تسلیت لپاره ورلېږلی بسم الله یې ویلې سلام یې ورته لیکلی د الله جل جلاله حمد یې موصوف په صفتونو سره ویلی دی او بیایې امابعد یعني وروسته د بسم الله حمد او سلام څخه ورته ویلي چې الله جل جلاله د اجرونه درته غټ او زیات وگرزوي ، الله جل جلاله د صبر درکړي ، الله جل جلاله دې موږ او تاسو ته شکر راکړي

يعني شکر گذاره ولري دغه زموږ نفسونه ، مالونه او اولادونه د الله جل جلاله له خوا موږ ته هبه شوي ، مبارکي هبې او امانت دی چې زموږ په لاس کې دي عاريت دې ته وايي چې يوشی دې په کار شي او د خپل کار لپاره يې موقت وغواړې يعني موقت وي لکه هغه پردی شی چې د موقت وخت لپاره يې درکړي او بېرته به يې ورکوې يعني ته يوه معلوم وخت پورې استفاده ترې وکړه او په يوه معلوم وخت يې قبض کوي بيا الله جل جلاله چې کله دغه نعمتونه راکړي نو شکر او صبر يې راباندې لازم کړی کله چې مصيبت راته ورسېږي ، ستا زوی د الله جل جلاله مبارکه هبه وه ، د الله جل جلاله امانت وو چې تاته يې درکړی وو او درڅخه يې قبض کړ په مقابل د ډېرو اجرونو په صلوة رحمة او هديې چې په آيت شريف کې ذکر دي که اجر غواړې نو صبر وکړه او جزعې ډېرې مه کوه خپل اجر مه باطله وه پښېمانه به شې په دې باندې پوه شه جزعې هېڅ شی نه شي دفع کولی ، نه غم دفعه کولی شي او هغه د الله جل جلاله فيصله شوې او کېږي والسلام. ( مشکوة شريف ۱۵۰ ص حاشيه )

وعن معاذ رضی الله عنه قال اوصاني رسول الله صلی الله عليه وسلم بعشر کلمات قال لاتشرک باالله وان قُتِلْتَ او حُرِّقْتَ ( الحديث )

قال علی قاري فی شرحه ای وان عُرِضْتَ للقتل والتحريق شرط جيئ به المبالغة. د مولانا علي قاري صاحب د ټول مطلب تشريح : د حضرت معاذ رضی الله عنه څخه روايت دی : نبي کريم صلی الله عليه وسلم راته وويل : د الله جل جلاله سره شريک مه نيسه په زړه او ژبه باندې ځکه کله چې د اکراه په حالت کې يو کافر مسلمان مجبور کړي د کفر په ويلو سره چې ووايه د کفر الفاظ هغه چې هر رقم د کفر الفاظ وي ، که چېرې يې ونه وايي او مړ يې کړي نو دا عزيمة او په لويه

مرتبه کې شهید دی ، که چیرې په زړه باندې مطمئن په ایمان وي نو په ژبه باندې د اکراه په حالت کې ورته د داسې الفاظو ویل جائزدي خو غوره همغه ده کوم چې په حدیث کې ذکر شول چې وان قُتِلْتَ او حُرِقْتَ اگر که قتل شې او په اور باندې وسوځول شې نو مه یې وایی او د جواز دلیل دا آیت شریف دی چې اِلّامَنْ اُکْرِهَ وَقَلْبُه مطمئن بالایمان. خلاصه د اکراه په حالت کې لوړه مرتبه د شهادت ده اگر که کافر مسلمان ته ووایي چې ووایه د کفر الفاظ که نه وژنم دې قتل کوم دې نو په دې وخت کې جواز دکفر د کلمې د ویلو په ژبه سره شته خو مولانا علي قاري صاحب وايي چې دا د هغه کس لپاره دی چې ځان قتل کړه یعني مرگ او په اور سوځول دي کافر له خوا د اکراه په حالت کې غوره کړه نه په ژبه ویل چې د مرگ څخه خلاص شې اگر که درته روا دي دا په هغه وخت کې چې دا کس او نفر د داسې کسانو څخه نه وي چې د اسلام صف ته سخته ضربه پرې ورسېږي لکه یو ډېرښه شجاع او پوه قوماندان د مسلمانانو یا یو لوی عالم او که چیرې لوی عالم وو او یا باتجربه قوماندان لکه په صحابه کرامو رضی الله عنهم کې چې خالد بن ولید رضی الله عنه وو نو بیا ورته اولی او لوړه مرتبه کلمه د کفر په ژبه ویل دي چې ژوندی پاتې شي او د اسلام صف پرې ضعیفه نه شي. ( مرقات ۱ج ، ۲۱۹ص )

## د بي بي خدیجې رضی الله تعالی عنها مناقب

وعن ابي هريرة رضی الله عنه قال اتى جبرائيل عليه السلام النبي صلی الله علیه وسلم فقال يارسول الله صلی الله علیه وسلم هذه خديجه قداتت معها اناء فيه ادام و طعام فاذا اتتک فاقرأ عليهاالسلام من ربها ومنى وبشرهاببيت فى الجنة من قصب لاصخب فيه ولانصب ( متفق عليه ) :

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی : جبرائیل علیه السلام راغی نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته یې وویل : یارسول الله صلی الله علیه وسلم دغه خدیجه ده راغله او ورسره لوښی دی چې په هغه کې کتغ او طعام دی کله چې راورسېده نو د الله جل جلاله سلام پرې ووایه او زما سلام هم ورته وایه او زیری ورکړه په یوه بیت ( کور ) چې د لؤلؤ څخه به وي ډېر غټ او پراخه به وي چې نه به پکښې چیغې وي نه تکلیف ، فکر وکړی مسلمانانو د بي بي خدیجې رضی الله عنها مقام ته ځکه په رسول الله صلی الله علیه وسلم ډېره ګرانه وه الله جل جلاله د جبرائیل علیه السلام په واسطه سلام ورته رالېږلی او جبرائیل علیه السلام هم سلام ورته رالېږلی وو مخکې ما یو حدیث لیکلی وو چې په هغه حدیث شریف کې ذکر شوي وو : نبي کریم صلی الله علیه وسلم به همېشه یو یو پسه په خدیجې رضی الله عنها پسې ذبحه او خیرات کولو او کله چې دا مبارکه وفات شوه نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم به یې ډېر صفت کولو او بي بي عائشې رضی الله عنها به ویل : یارسول الله صلی الله علیه وسلم داسې صفت یې کوې لکه په دنیا چې بله ښځه نه وي نو ده مبارک به ورته ویل : چې داسې ښه صفتونه په کې وو غار حرا ته به خدمت ته را روانه وه دا غر ډېر سخت دی چې اوس زنانه ورختلی نه شي او دا مبارکه به خدمت کولو ته ورختله. ( مشکوة شریف ۵۷۳ص )

## د صحابه کرامو د کرامت بیان

حضرت انس رضی الله عنه فرمایي : أُسَيْدبِنْ حُضَير او عباد بن بشیر دواړه صحابه کرام نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته د څه خبرې لپاره یا د څه کار لپاره له ماښام نه وروسته ورغلي وو او ډېره سخته تیاره شپه وه نو کله چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم څخه را روان شول په لاره باندې د یوه عصا (لکڼې) رڼا ورته کوله بیا چې کله د دوی لارې سره جلا (بېلې) شوې نو دهغه بل صحابي لکڼې هم رڼا

ورته شروع کړه ، مسلمانانو ورونو دا د صحابه کرامو رضی الله عنهم اجمعین کرامتونه وو ، لرګي به ورته رڼا کوله دا کرامت د بخاري شر یف غوندې قوي کتاب باندې ثابت دی. ( مشکوة شریف ۵۴۴ص ).

## فالقی البحر حو تایقال له عنبر

حضرت جابر رضی الله عنه وایي : موږ د جیش الخبط یعني د پاڼو د لښکر په غزاکې دانوم یې ځکه پرې ایښی دی چې صحابه کرام د داسې لوږې سره مخامخ شوي وو چې د ونو پاڼې یې خوړلې ، حضرت جابر رضی الله عنه وایي : زموږ مشر ، آمر ابو عبیده بن جراح رضی الله عنه وو او د ډېرې سختې لوږې سره مخامخ شوو ، الله جل جلاله په بحر باندې یو مړ ماهی راوغورځاوه چې عنبر ورته ویل کېده ، موږ دغه رقم ماهی نه وو لیدلی او د دغه ماهي له پوستکي څخه به د تُرْس یعني ډال هغه چې په جنګ کې د تورې د مخنیوي لپاره استعمالېږي کار اخیستل کېده نو نیمه میاشت خوراک مو ترې وکړ په بعضو روایاتو کې ( ۱۸ او ۳۰ ) ورځې راغلې دي تطبیق د روایاتو دادی چې ( ۱۵ ) ورځې ټولو خوراک ورڅخه کړی دی او له بعضو سره د میاشتې تر آخره د دغه ماهي غوښه موجوده وه ، ابوعبیده رضی الله عنه یو هډوکی ودرولو او په اوښ باندې سپور سړی لاندې ورڅخه تېر شو یعني دومره غټ وو کله چې راغلو نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته مو قصه وکړه ده مبارک صلی الله علیه وسلم وویل : یو رزق وو چې الله جل جلاله درته را ایستلی دی موږ ته یې هم راکړی یعني ډېر برکتناک خوراک دی نو موږ د هغه ماهي غوښه ور ولېږله او ویې خوړله. ( متفق علیه ) بعضوعلماوو ویلي دي : د صحابه کرامو شمېر تقریبا( ۳۰۰ ) نفره وو. ( مشکوة شریف ۳۶۰ص )

## د زيات عبادت کوونکو خلکو يو څو نمونې

د ترمذي شريف په دوهم جلد ( ١٧٨ ص ) کې کې داسې ذکر دي : وکان عمير ابن هانئ : عمير ابن هانئ به په لمانځه کې هره ورځ ( ١٠٠٠ ) زر سجدې الله جل جلاله ته کولې او هره ورځ به يې يو لک وارې د الله جل جلاله تسبېحات ويل.
د ردالمحتار د علامه شامي صاحب مور ډېره نېکه او تقوی داره مېرمن وه دا د خپل زوی علامه شامي ترمړينې وروسته هم دوه کاله ژوندی وه او په هره اونی ( هفته ) کې يا اوو ورځو کې به يې سل زره ځله فاتحه شريفه تلاوت کوله او ثواب به يې خپل زوی علامه شامي صاحب ته وربانېه ، يعني د دغې مبارکې مېرمنې به په څومره زياته اندازه نور عبادتونه وو. ( دا خبره په فتاوی عصريه کې ذکرده ). د رد المحتار په ( ١ ج ، ٦٦٦ ص ) کې علامه شامي صاحب مړي ته د ثواب هديه کولو ( بښلو ) په بحث کې ويلي دي : ابن الموفق د ( ٧٠ ) اويا حجونو ثواب حضرت محمد صلی الله عليه وسلم ته ببښلی وو او ابن سراج په نبي کريم صلی الله عليه وسلم پسې د قرانکريم له لس زره زيات ختمونه کړي دي همدارنګه اضحيې يې ورته کړېدي نو محترمو مسلمانانو وروڼو متوجه شی چې نور به يې د ځان لپاره څومره ختمونه کړي وي او موږ تاسې له ختم او تلاوت څخه غافله يو بايد ختمونه او تلاوتونه وکړو همېشه دقرانکريم حق په ځای کړو او عمل پرې وکړو.

## د قران عظيم الشان په دريو ورځو کې حفظ کول

لطيفه علامه شامي صاحب په ردالمحتار ( ٥ج ، ٢٨٨ص ) کې ليکي ، له هشام ابن الکلبي څخه نقل شوي ما په ډېر لږ وخت کې ( دريو شپو ) کې قرانکريم حفظ کړی دی ، هېڅ هم په دومره لږ وخت کې نه دی په ياد کړی او

په ډېر لږ وخت ( دریو شپو ) کې مې هېر کړی دی ،د هېرولو وجه داوه : زما ږیره چې ترقبضه زیاته وه دمخ طرف ته په زنه باندې هغه مې قطع کړه ، یعني تر قبضه د زیاتې ږیرې پرېښودل هم سنت دي او ترقبضې یې کمول حرام دي د زنې د مخ طرف ته لکه هشام ته چې د الله جل جلاله له خوا څخه سزا ورکړل شوې ده. په اربعه مذاهبو کې دری مذهبونه د ږیرې قطع کول ، او ترقبضه کمول حرام بولي ، فقط یو مذهب یې حرام نه بولي. ( الفقه الاسلامي و ادلته ۴ج ، ۲۶۵۹ص ).

مالکیه او حنابله علما حلق د ږیرې ته حرام وایي ، احناف علما ورته مکروه تحریمي وایي او شافعیه علماورته مکروه وایي کېدای شي مکروه تنزیهي به ورته وایي ځکه چې زموږ د مذهب مقابل یې ذکر کړه.

قال امام احمد في کتاب الاثار عن الامام اعظم فما زاده على القبضة نقطعه و بقول الامام نأخذ یعني تر قبضه زیاته ږیره قطعه کول د امام اعظم صاحب مذهب دی او موږ عمل ورباندې کوو اخذ یعني ټینګوویې.

## د تعویذ په غاړه کې اچولو اثبات

و عن عمر بن شعیب عن ا بیه عن جده ان رسول الله صلى الله علیه وسلم قال الحدیث : عمرو بن شعیب په خپل سند سره روایت کړی دی : رسول الله صلى الله علیه وسلم وویل : هرکله چې وډارشي یوله تاسوڅخه په خوب کې نو دا دعا دې ووایي : اَعُوذُ بِکَلِمَاتِ اللهِ التّامَاتِ مِنْ غَضَبِه وَ عِقَابِه وَ شر عباده ومن همزات الشیاطین وَ اَنْ یُحْضَرُون. نو هېڅکله به و رته څه شی ضرر ونه رسوي او عبدالله ابن عمرو ابن العاص به دغه دعا چې چابه د خپلې اولادې څخه زده کړی وه او یابه یې نه وه زده کړی هر چاته به یې وربښودله.او یا به یې دغه دعاپه یو کاغذ یا یو شي ولیکله او په غاړه کې به یې ور وا چوله دغه حدیث او دغه

عمل د دغه صحابي مبارک زموږ د مذهب د علماوو لپاره دلیل دی چې تعویذ په غاړه کې ور اچوو او دغه مسئلې په ردالمحتار او نورو کتابونو کې ذکردي.

د جامو اغوستلو په وخت کې نبي [عليه الصلوة والسلام] دغه دعا ویلې ده:
اللهم لک الحمدکما کسوتنیه اسأ لک خیره و خیر ماصنع له و اعوذبک من شره وشرماصنع له. رواه الترمذي و ابوداوود. مشکوة شریف ( ۳۷۵ص ).

## د پښنو پورته کول په لمانځه کې

رفع القدمين في الصلوة لاتفسد ( ردالمحتار و حاشیه جدیده علی الهدایه ۱۰۰ ص مولوي عبدالعلي دېوبندي ). دې دواړو پښنو پورته کول په لمانځه کې لمونځ نه فاسدوي او کومو علماوو چې ویلي دي چې که چا پورته کړې لایجوز الصلوة د هغې معنی داده چې دا عمل حلال نه دی دا معنی یې نه ده چې لایصح که څوک پوره تفصیل غواړي (ردالمحتار ۱ج ، ۲۳۶ص ) دې وګوري او یا دې په اوله هدایه ۱۰۰ص باندې نویې حاشیه د مولوي عبدالعلي دېوبندي چې د حضراتو په ملا سره مشهوردی وګوري.

## که څوک په صلوة تسبیح لمونځ کې سهوه شي نو سجده سهوه به څنګه کوي

که څوک د صلوة تسبیح په لمانځه کې سهوه شو په سجده سهوې کې فقط دری دری تسبیح شته ( هغه خپل تسبیح د سجدې ) او د صلوة تسبیح تسبیحات ( ۳۰۰ ) دي تردې زیات نه دي. ملا علي قاري صاحب ویلي دي که د چا څخه په کوم ځای کې تسبیح کم او یا پاتې شي نو په بل ځای کې به یې بیاوایي تر څو هغه ( ۳۰۰ ) تسبیح پوره شي البته کوم تسبیح چې پاتې شوي هغه به په هغه نیژدې وروستي ځای کې وایي او که ډېر تسبیح پاتې وي نو د قومې تسبیحات به په سجده کې وایي او د رکوع تسبیحات که پاتې شول په

سجده کې به يې پوره کوي نه په قومه کې ځکه په قومه کې تر هغه خپلو تسبېحاتو نور زيات ويل نه دي په کار ځکه د قومې ډېر زيات اوږدول مشروع نه دي ، همدارنگه که د اولې سجدې تسبېحات پاتې شي نو په جلسه کې به يې نه وايي په جلسه کې به فقط هغه خپل تسبېحات وايي او هغه پاتې د اولې سجدې تسبېحات به په دوهمه سجده کې وايي. په فتاوی عصريه ( ۵۸ص ) کې ويل شوي دي : په قومه کې لاس په نامه اېښودل پکار دي ځکه چې د شيعه گانو سره مشابهت رانه شي او په فتاوی دار العلوم دېوبند ( ۱۹۱۶ ) پوښتنه کې ويل شوي دي : د خلکو معمول عمل لاس ځوړندول دي يعني هغه مفتي عزيزالرحمن صاحب ورته مکروه نه دي ويلي د قومې د صلوة تسبېح په وخت کې لاس ځوړندول.

## په لمانځه کې د خپلې عاطسې جواب په يرحمک الله

د رشيد البيان دغه مسئله چې په دې بيت کې يې ويلې ده ضعيفه ده:

يا جواب به دې انژي کا : يا دخپل يا دې پردي کا

علامه شامي صاحب په ردالمحتار کې وايي که چا د خپل عطسي ( پرنجېدو ) جواب په لمانځه کې ووايه په يرحمک الله سره په اتفاق د علماوو سره لمونځ نه فاسدېږي او په پورته ذکرشوي بيت کې يې فاسد گرځولی دی. طحطاوي ( ۲۶۴ ص ).

په دغه بيت باندې هم اعتراض کېږي:

بدي درومي په نيکي : چې په حديث شريف کې هم راځي: ان الحسنات يُذهبن السيئات تردې ځايه دغه بيت صحيح دی خو دغه بل نيم بيت چې وايي ، نېکي

نه ځي په بدي : او سره له دې چې نېکي له مابين څخه ځي په بدی باندې لکه العياذ باالله مؤمن مرتد شو کافر شو نو ده چې د ايمان په حالت کې نېکي کړې وي هغه له منځه ولاړې يا ايمان په خپله نېک عمل دی او کفر بد عمل دی ، د کفر دغه بد عمل د اسلام نېک عمل له منځه وړي.

په دغه بيتونو کې هم ضعف دی :

لوح قلم عرش کرسي : ته يې وګڼه باقي

فناه مه ګڼه د دوی : بقا وګڼه د دوی

هم جنت او دوزخ ياره : ارواحان ورسره شماره

صحيح خبره داده چې کُلُّ شَئٍ هَالِکٌ الا وَجْهَه يعني د لږ وخت لپاره به جنت ، دوزخ ټول شيان فنا کېږي. او کوم علما چې مخکنی خبره کوي د دې آيت معنی داسې کوي چې په هرشي کې الله جل جلاله استعداد د فنا کېدو پيداکړی دی بې له خپل ذات څخه يا دغه شيان د دې آيت څخه مستثنی دي.

## تائيد فرضية الوضوء باالآية

شيخ عبدالعلي ديوبندي صاحب په خپله حاشيه على الهدايه کې ويلي دي چې دغه آيت چې فاغسلو وجوهکم بالآية : دا آيت مُثْبِتْ لپاره د فرضيت دې اوداسه نه دی ځکه چې دا آيت مدني دی په اتفاق د علماوو سره او د لمونځ فرضيت په مکه کې شوی دی سره له او داسه په احاديثو باندې او متأ خر شی مثبت نه شي واقع کېدی لپاره دې متقدم بلکې داسې ويل په کار دي چې تائيد کوي دا آيت شريف د هغه مخکني فرضيت په احاديثو سره دا ځکه چې په احاديثو کې تغير راځي او انکار ورڅخه ممکن دی يعني امکان لري چې

 څوک ورڅخه منکر شي په تېرېدلو د زمانو سره اما هرچې قران دی دهغې په هکله الله جل جلاله فرمايي اِنّانَحْنُ نَزلناالذکر واناله لحافظون : ځکه داسې محکم تائيد د مخکيني فرضيت ته ضرورت وو که څوک غواړي چې دامسئله وګوري د شېخ عبدالعلي دېوبندي صاحب پورتنی حاشيې ته دې مراجعه وکړي. ( طحطاوي نورالايضاح )

## له ويده څخه سجده تلاوة اورېدل

علامه شامي ويلي دي : اذا اُختلف التصحيح فلا يَعْدِلُ عن ظاهر الروايه کما قال صاحب نور الايضاح في مسئلة سماع آية السجده من نائم : له ويده څخه د سجدې تلاوة اورېدل په عبارت کې يې ويلي واختلف التصحيح علماوو ښودلې چې صحيح ده يعني سجده پرې لازمېږي او بعضې وايي چې نه پرې لازمېږي نو په داسې ځای کې ظاهر الرواية ته اعتباردی.

## د حضرت آدم عليه السلام د جنازې لمونځ

کله چې حضرت آدم عليه السلام وفات کېدلو او مرګ ته نيژدې شو نو ملائکه وو حنوط خوشبويي او کفن له جنت څخه ورته راووړ ، کله چې وفات شو ملائکو درې واره غسل ورکړ په په ابو او سِدْر سره ، کافور خوشبويي يې استعمال کړه ، کفن يې درې جامې ورته وکړ ، لحد يې ورته وکيندلو او د جنازې لمونځ يې ملائکو وکړ ، بيايې د ده اولادې ته وويل دا طريقه ده د هغې چا لپاره چې وروسته راځي. واقدي يو عالم دی هغه وايي کله چې خديجه رضی الله عنها وفات شوه پس د بعثت له لسو کلونو نو تر هغې وخته دې جنازې لمونځ نه وو مشروع شوی ، ابن عماد وايي په مکه معظمه کې لحدلرونکی قبر ورته وکيندل شو د حواء عليهم السلام د قبر خواته او جبرائيل عليه السلام يې د

جنازې په لمانځه کې امام وو. کذا فی النهایه او ابن العماد جزم محکم والی په دې کړی چې شیث علیه السلام یې امام وو، بعضې علما وو بیا د دواړو خبرو داسې تطبیق کړی دی چې جبرا ئیل علیه السلام د ملائکو او شیث علیه السلام د انسانانو امام وو او یا داسې وایي چې امام شیث علیه السلام وو ، جبرائیل علیه السلام مُبَلِّغْ وو ، هغه دوهم نفر چې غږ نورو ته رسوي ، یا داسې وه چې امام جبرائیل علیه السلام وو او کیفیت د لمانځه یې شیث علیه السلام ته ښودلی دی لکه : کله چې لمونځ فرض شو جبرائیل علیه السلام ، نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته د لمانځه طریقه وروښودله او امامت یې ورته وکړ. ( طحطاوي ۴۷۸ ص ).

او په تفسیر مدارک کې ذکر دي ، د آدم علیه السلام قبر په هند کې دی او له جنت څخه هم په هند کې د سر اندب وطن په جبل النود کې راکوز شوی دی.

په حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې د جنازې د لمونځ امامت چا نه دی کړی ، صحابه به راتلل لمونځ به یې کولو هر څومره به چې په کوټه کې ځایېدل. ( طحطاوي ۴۸۲ص ).

## د ډېرو خلکو لپاره په جهر سره قرانکریم تلاوت کول مکروه دي

په مجلس کې ټول خلک باید په جهر سره قرانکریم تلاوت نه کړي ځکه مکروه دی ځکه چې استماع او انصات نه راځي کوم چې په آیت شریف کې امر شوی دی چې د لمانځه په داخل کې سمع واجب ده او له لمانځه څخه خارج سنت ده. ( طحطاوي ۲۸۵ص ).

## په لمانځه کې په یوه او بله پښه د مه کول

په منیة المصلي کې دا مسئله ذکرده چې تراوُح ( دمه ) د مصلي یعني ځان ته راحت ورکول یو وار په یوه پښه او بیا په بله پښه دا عمل مکروه دی ، نو مسلمانانو وروڼو په دغه مسئله کې تفصیل داسې دی که چیرې پیوسته دا کار کوي مکروه دی او که د یوڅه ځنډ وروسته داسې کار وکړي بیا مکروه نه بلکې سنت دی. لکه د امسئله ردالمحتار هم ذکر کړېده او ابن امیر حاج تحقیق ورباندې کړی دی چې دغه ابن امیر حاج ډېر محقق عالم دی او د فتح القدیر د صاحب شاګرد دی همدارنګه عالمګیري او فتاوی ظهریه هم داخبره کړېده.

په تکبیر افتتاح ، قنوت ، د عیدین په تکبیرونو ، استلام د حجرالاسود او رَمْي د جمرو کې لاسونه د اوږو په برابری پورته کوی ، په استلام د حجر الاسود کې چې رفع الایدي کېږي باطن د لاسونو ( ورغوي ) به حجر الاسود ته کوي او په رمې د جمرو کې به باطن د لاسونو کعبې طرف ته کوي په ظاهر الروایة کې او په باقي ځایونو کې به یې په برابری د سینې پورته کوي او د دواړو لاسو په مابین کې باید لږ فاصله وي. ( طحطاوي ۲۰۷ص ).

## د وصل په حالت کې د اول الله اکبر د را د حرف توری په دوهم الله اکبر باندې

رفع پېښ او فتحه دواړه روا دي ، بیا ځوک فتح ته اولی بهتره وایي او بعض علماء رفع پېښ اولی بهتره بولي ، محترمو مسلمانانو ما په خپله چې ردالمحتار مطالعه کړی دی نو په دې موضوع یې دوه ځایه بحث کړی دی ، یو ځای یې په ( ۲۸۴ص ) او بل ځای یې په ( ۳۵۵ص ) کې دا بحث کړی دی ، علامه شامي ډېر تحقیق کړی دی چې خلاصه یې داده : د اول الله اکبر د را حرف ساکن دی دا خبره د امداد ، زیلعي او بدائع ده او بعضې علماء وایي چې فتحه ده دې

حرف را على نيت الوقف او بعضې وايي چې ضمه دې اعراب ده ، خو د علامه شامي قول په خپله دادی چې والصواب الرفع نو همزه د ثاني الله اکبر ساقطه ده په درج کې او د دوهم تکبیر د را حرف ساکن دی او د درمختار عالم د دې حدیث چې موقوف هم ورته ويل شوی او مرفوع هم معنی داسې کړې چې الاذان جزم والاقامة جزم اي مقطوع المد. چې په دې اوله همزه د الله اکبر به مد نه کوي که دا حدیث صحیح هم شي لکه علامه شامي وايي چې ډېرو علماوو دغه حدیث ثابت نه دی بللی بیا علامه شامي صاحب یوه بل لوی عالم ته حواله ورکوي چې هغه رساله په نامه د تصدیق من اخبر بفتح راء اکبر او ډېر تفصیلات يې کړي دي ، خلاصه يې شامي نقل کړې چې اول خو سنت داده ، چې د اول الله اکبر د راء حرف د ې ساکن وويل شي خوکه وصل کوي نو بیا د دغه را فتحه ويل بهتره دي که يې ضمه وويله نو مخالفت د سنتو يې وکړ ، ځکه طلب د وقف په اول الله اکبر گرزول شوی کاالساکن اصالة فحرک باالفتح ، خلاصه علامه شامي صاحب رفع د را بهتره وگرزوله او دغه عالم فتحه بهتره وگرزوله. مولاناعلي قاري صاحب په مرقات د مشکوة شریف شرحې په ( ۲ج ، ۳۱۲ص ) کې رفع پېښ قول دی اکثره علماوو گر ځولی دی ، خلاصة الخلاصه دواړه روا دي خو رفع اولی او بهتره ده.

## موږ ته چې د دوهې سجدې امر شوی

د دوهمې سجدې امر چې موږته شوی ، علماوو يې قِسم ،قِسم حکمتونه ویلي دي بعضې علمأ وايي دا امر تَعَبُّدِيْ دی ، موږ ته دې عبادت امر شوی نور په حکمت يې علم نه لرو ، لکه د لمانځه د رکعتونو څوک داسې نه شي ويلی : چې ولې د پلاني وخت دومره رکعته دي او دپلاني وخت دومره رکعته دي ، بعضې علما وايي چې د شيطان د ذليل کولو لپاره موږ ته د دوهم

ځل سجدې کولو امر وشو ، يعني الله جل جلاله ته د بنده ګانو (آدم عليه الصلوة و السلام او اولادې يې) دوې سجدې وکولې او شيطان يوه هم ونه کوله نو کله چې آدم عليه السلام يوه سجده وکوله بيايې بله سجده هم وکوله ، بعضې علما وايي : الله جل جلاله عهد ميثاق د آدم عليه السلام د اولادې څخه په ازل کې واخيست نو امر يې ورته وکړ چې سجده وکړي نو کوم چې مؤمنين مسلمانان وو هغو سجده وکړه کله يې چې سرونه راپورته کړل چې کفارو سجده نه وه کړې نو مسلمانانو دوهمه سجده وکړه خو دا خبره ضعيفه ده ځکه په سورة اعراف (۱۷۲) نمبر آيت کې چې دغه ذکر شوي آيت د عهد ميثاق کې صراحة ذکر دی الله جل جلاله ټولو ته ويلي دي اَلَسْتُ بِرَبِكُمْ قَالُو بَلَى ټولو هُو (بلې) ويلي دي ، بعضې علمأ وايي کله چې ملائکه وو سجده وکړه آدم عليه السلام ته کله چې دوی راپورته شوې ويې ليدل چې شيطان سجده ونه کړه ، الله جل جلاله يې مخ شاطرف ته او شا يې مخ طرف ته تاو کړې وه او په مخ يې لکه د خنزيرانو وېښته راشنه وو نو ملائکو بيا سجده وکړه شکراً چې شکر ادا کړي د دې چې موږ ته الله جل جلاله د سجدې کولو توفيق راکړ ، نو موږ ته امر په دوه سجدو وشو ، بعضې علما وايي چې په اوله سجده کې اشاره دې ته ده چې د دغه ځمکې څخه پيدا شوي يو او په دوهمه سجده کې اشاره دې ته ده چې بېرته مو همدغې ځمکې ته رجوع ده او په همدې ځمکه کې به دفن کېږو ، لکه په دې آيت کې چې الله جل جلاله فرمايي : مِنها خَلَقْنَاكُمْ وَ فِيْهَا نُعِيْدُ كُمْ وَ مِنْهَا نُخْرِ جُكُمْ تَارَةَ اُخْرَى. ترجمه : دې دغه ځمکې څخه مو پيداکړي ياست او په همدغه ځمکه کې به دفن کېږی او له همدغې ځمکې څخه به مو راوباسم يعني بعث بعدالموت ، کله چې څوک قبر ته خاورې وراچوي هم نو همدغه آيت شريف دې وايي. نو د دې دوه سجدو حکمت دادی او موږ ته په دوه سجدو امر شوی دی. (طحطاوي ۱۸۹ص).

## د لېوني د سجدې تلاوت حکم

لېونتوب درې مرتبې لري :

لومړی قاصر جنون : هغې لېوني ته وايي چې لېونتوب يې له يوې شپې او يوې ورځې څخه کم وي يعني لېونتوب يې له يوې شپې او يوې ورځې څخه زيات نه وي.

دوهم کامل غير مطبق جنون : چې لېونتوب يې ته يوه شپه او ورځ زيات دوام کوي.

دريم کامل مطبق جنون : چې همېشه لېونی وي ، که لېونتوب يې همېشه وو د سجدې آيت يې تلاوت کړ او يا يې له چا څخه واو ري نو سجده نه پرې واجبېږي ، که جنون يوه شپه او ورځ وا يا تردې کم وو نو بيا سجده پرې لازمېږي ، که يې ووايي او يايې واوري ، که چېرې له يوې شپې او ورځې زيات لېونی وو خو دهمېشه لپاره نه وو نو بيا په دغه رقم ويونکي لېوني باندې سجده نه لازمېږي او په اورېدونکي يې لازمېږي. ( رد المحتار ۱ج ، ۸۶۵ ص ، درمختار حاشيه). د نائم يعني ويده څخه د سجدې او رېدل ياويل ډېره اختلافي مسئله ده چې صاحب د طحطاوي او نور الايضاح داسې عبارت ويلی دی : واختلف التصحيح يعني چا لازمېدل صحيح ګرځولي دي او چا نه لازمېدل صحيح ګرځولي دي ، لکن علامه شامي صاحب د دې مسئلې په اړه په تنقيح فتاوی حامديه کې ويلي دي چې هر هغه چې ظاهر الرواية وا هغه قوي دی له هغې څخه به نه ګرزي. علامه ابن امير حاج يې په يوه حالت کې هم لازمه نه بولي ( طحطاوي ۳۹۶ ص ).

## د تراويح ټول رکعتونه او څلور په يوه سلام سره

که يو څوک د تراويح ټول رکعتونه يا څلور په يوه سلام سره وکړي ، نو که چيرې يې په دوه دوه رکعتونو کې ناسته نه وي کړې نو دا په دوه رکعته حسابيږي يعني دوې تراويح حسابيږي او شل يې نفل حسابيږي چې په دغه يوه سلام سره يې کړي دي او سجده سهوه به کوي ، مفتي عزيزالرحمن صاحب په فتاوى يې دار العلوم ديوبند کې وايي : دوه رکعته کول بهتره دي خو که څلور رکعته کوي او پس له دوه رکعته تشهد کوي داهم روا ده.

## که چيرې څوک دعا قنوت نه شي ويلای نو دغه لاندې الفاظ ويلی شي:

اول : اللهم اغفرلي درى ( ۳ ) کرته.

دوهم : اللهم ربنا اتنا في الدنيا حسنة و فى الاخرة حسنة وقنا عذاب النار. صاحب د هدايې په تجنيس کتاب کې او همدغه زموږ مشائخو هم مختاره کړي دي او داهم ويلی شي : يارب ، يارب ، يارب او د مراقى الفلاح صاحب وايي څه شرط نشته چې دعاء قنوت نه شي ويلی نو پورتني الفاظ ټول ويلی شي يعني که يې دعا قنوت زده وي او که يې نه وي زده په دواړو حالتونو کې پورتني الفاظ ويلی شي. (طحطاوي ۳۱۲ص ). او همدغه قول د بحر رائق هم دی.

## په سخت باران کې دې جنازې لمونځ په مسجد کې کول

دې طحطاوي په ( ۴۹۱ ص ) کې يوه مسئله ذکر ده که چيرې سخت باران وو نو باران عذر دی په مسجد کې دې جنازې لمونځ کول جائزدي وروښو په دغه نورو دې فقهې کتابونو کې هم دغه مسئله ذکر شوېده ( عالمگيري ۱۷۵ص ، خانيه ، کافي ) او په فقه کې دغه الکافي کتاب دې کنز د مصنف دی داهم

معتبر کتاب دی خصوصاً دې طحطاوي کتاب مصنف ويلي دي چې په دې خبره سره دې ټولو علماوو اتفاق دی.

دامسئله مرحوم ملاصاحب سيدعلم په خپلو قلمي حاشيوکې چې دې هدايو په کتابونو يې کړې دي ذکر کړېده ، مرحوم ملاصاحب سيدعلم زمانيکه ( بابا ) دی او پلار مې مرحوم ملاصاحب غلام حسن آخندزاده دی ، زه اکثره کتابونه دې همغه خپل بابا گورم او مرحوم ملاصاحب دې افغانستان دې لويولويو مدرسينو علماوو او دې خپل عصر دې لويو لويو علماوو استاد وو خپل ټول عمر يې په تدريس کې تېر کړی دی ، دې هفت آسياب مشهور عالم ملاصاحب جانان يې شاگرد وو او آخري کتابونه يې پرې ويلي وو دې چک دې ولسوالی دې سيآب دې درې ملاصاحب محمد انور يې هم شاگرد وو ، او نور لکه دې يوسف خېلو آخندزاده صاحب چې دايې دې نمونې په شکل ما ذکر کړل. په ( ۱۳۲۵ هـ ،ش ) کال کې وفات شوی په شرح عقائد يې په (۱۳۱۲ هـ ، ش ) کال کې حاشيې ليکلې دي او په آخرو هدايو يې په ( ۱۳۱۸ هـ ، ش ) کال حاشيې ليکلې دي.

## په سفر کې سنت کول په کار دي او که نه

قدرمنو مسلمانانو په سفر کې دې سنت لمانځه په کولو باندې امر شوی دی ، که داسې حالت وو چې دې چا عجله ( بيړه ) وه نو بيا سنت پرېږدی او که عجله او بيړه نه وه نو بيا سنت لمونځ ادا کوئ ما په خپله ليدلي دي ، ښه ډېر وخت وي مسافرين څوک په هوټلونو کې ډوډۍ خوري او څوک لمنځونه کوي داسې مه کوی ورونو لمونځ د اسلام عظيم الشانه بنا ده ، دې نبي کريم صلی الله عليه وسلم سنتو ته په سپکه سترگه مه گورئ ، کتاب خو داسې نه دي ويلي

چې مه يې کوئ او خلک يې نه کوي ورونو کتابونو خو داسې ويلي دي چې مسافر به سنت کوي که يې بېره او عجله نه وه او که چېرې يې عجله او بېره وه نو بيايې مه کوی ، نو الله جل جلاله دې موږته دې نبي کريم صلی الله عليه وسلم په ټولو سنتونو دې عمل کولو توفيق راکړي.

## که امام دريم رکعت ته پورته شي

که امام دريم رکعت ته پورته شي او مقتدي تشهد نه وي خلاص کړی نو دې امام متابعت دې نه کوي ځکه دې يوه واجب پرېښودل دي بل واجب لپاره چې متابعت دې امام دی دا مکروه تحريمي دي يعني تشهد به نه پرېږدي او که امام دې رکوع او ياسجدې څخه راپورته شو او مقتدي تسبېحات دې رکوع نه وو پوره کړي متابعت به يې کوي ځکه متابعت دې امام واجب دی او دا تسبېحات سنت دي ، که چېرې امام نه وو را پورته شوی له رکوع څخه او مقتدي راپورته شو بياهم متابعت واجب دی بېرته به رکوع ته ورگرځي دا دې ده دوه رکوع گانې نه بلل کېږي نو خصوصاً امامان په تراوېحو کې ډېره غټه غلتي کوي دې رکوع او سجدې تسبېحات پوره نه وايي او ټول کتابونه وايي چې پوره به يې وايي خو خير هغه خو دې دوی مسؤليت دی ، دوی ډېر تېز دې رکوع او سجدې څخه راپورته کېږي په دغه وخت کې بعضې خلک کوشش کوي دغه تسبېحات پوره کوي نو ورونو په دې ځای کې تسبېحات پرېږدی او متابعت کوی ځکه متابعت واجب دی يعني تسبېحات مه وايئ کله چې امام پورته شي. ( رد المحتار ۱ج ، ۳۶۶ص ).

## دا څنګه صورت دی په لمانځه کې چې څلور رکعته فرض تول ډک دي

که چېرې امام ته بې اودسي ورپېښه شي ، دوه رکعته لمونځ يې کړی وي او دوه رکعته پاتې وي خو په دغه اولو دوو رکعتونو کې امام سورت نه وي ویلی ، په دغه وخت کې مسبوق اقتدا پسې کړې ده په داسې حال کې چې دغه مسبوق اولني دوه رکعتونه نه دي کړي ، امام همدغه مسبوق پاتې لمانځه لره مخکې کړي او پوه يې کړي چې ما په مخکې رکعتونو کې سورت نه دی ویلی نو دغه مسبوق چې اوس امام شو هغه دوه سورتونه به په دغه دوه رکعتونو د خلکو کې راګرزوي نو کله چې د خلکو څلور پوره شي دغه مسبوق خو ببرته پورته کېږي ځکه چې دهغه څخه دوه رکعته تېر شوي او هغه به ډک اداکوي نو پورته ذکر شوی صورت جوړشو. ( طحطاوي علی مراقی الفلاح )

مسافر چې په مقیم امام پسې اقتدا کوي نو باید عدد ذکر نه کړي یعني څلور یا دوه به نه وایي فقط هغه وخت او فرض به یې په نیت کې وي. ( مجموعة الفتاوی ۳ج ، ۵۷ص )

## په نفل لمونځ کې سجده سهوه

مسلمانانو وروڼو زما څخه په کراتو ، کراتو بعضو خلکو دا پوښتنه کړېده چې په نفل لمونځو کې سجده سهوه نشته ماورته ویلي چې دا مسئله چا کړېده او په کوم دلیل باندي. قدرمنو وروڼو واضح او قوي مسئله هغه ده چې مفتابه وي یعني فتوی پرې شوې وي ، که اختلافي مسئله وي ، دې ظاهر الروایة مسئله وي ، یاکه دې شروحو مسئله یو رقم وه او دې متونو بل رقم وه ، یا په شروحو کې یو رقم وه او په فتاوی وو کې بل رقم وه نو صحیح ده یعني اول وروڼو مفتابه مسئله ده ، بیا که اختلافي مسئله وه ګوروبه که دې ظاهر

الروایة او نادرالروایة اختلافي مسئله وه نو په ظاهر الروایة به عمل کوي او که چېرې اختلاف دې شروحو او متونو وو بیابه دې متن واله را جحه او قوي وي ، که اختلاف دې شروحو او فتاوی وو وي بیابه دې شروحو قول ته اعتبار وي او فقهاء اووه ( ۷ ) طبقې دي نو په بعضې وختونو کې به علماوو ته ګورئ چې په مسئله کې یې اختلاف وي نو کوم چې دې مخکې طبقې څخه وي په هغه قول به عمل کوئ.

دې پورته مسئلې دې سوال جواب : قدرمنو مسلمانانو درمختار متن دی قوي مسئله ده چې والسهوای السجده السهو فی الصلوة العید ، والجمعة المکتوبة والتطوع سواء. یعنې سجده سهوه دې اختر ( عید ) ، جمعې ، فرضو ، او نفلو لمونځونو کې برابره ده یعنې په ټولو کې شته خیر بیا فقهاوو دې اختر په لمانځه کې ویلې چې سجده سهوه شته خو که امام سهوه شي نه یې دې کوي ځکه بیر بار ډېر زیات وي خلک ډېر وي او په لمانځه کې ګډوډي راځي نو قدرمنو که په نفلي لمانځه کې سهوه کېدی نو په فرض لمانځه کې چې په کومو ځایونو کې سجده سهوه لازمېږي دلته هم لازمېږي.

مګر یوه خبره امکان لري چې دغه کومو کسانو چې یو یونیم کس داسې اورېدلي وي چې په سنتو کې سجده سهوه نشته که چا داسې ویلي وي چې په لمانځه کې چې کوم سنت دي که له چا څخه پاتې شي یایې له مستحباتو څخه په نفلو تعبیر کړی وي بیا صحیح ده چې رېښتیا هم دې هغه سنتو او یا مستحباتو چې په لمانځه کې دي په ترک سره یې سجده سهوه نه لازمېږي.

په لمانځه کې دوارې سجدې فرض دي ( طحطاوي نورالایضاح ۱۸۵ص )

## په سرتور سر او خولی کې لمونځ کول

قدرمنو په پټکي ( لونګی ) کې لمونځ کول دا د سنت طریقې موافق لمونځ دی او د ترمذي شریف په حاشیو کې یې ویلي دي چې له پټکي سره لمونځ د بې پټکي لمانځه سره د ( ۷۰ ) رکعتونو نفلو لمونځونو په اندازه سره توپیر لري یعني په پټکي کې لمونځ په دومره اندازه سره زیات ثواب لري. ( طحطاوي ۲۹۲ص )

سرتور سر لمونځ کول فتاوی عالمګیري مکروه تنزیهي بللي دي د تکاسل له وجهې او که د خضوع ، تضرع او عاجزی له وجهې وي بیانه دی مکروه بلکې د هدایې کتاب مصنف په تجنیس کتاب کې مستحب ورته ویلي دي خلاصه سرتور سر لمونځ کولو ته مفتي عزیزالرحمن په فتاوی دار العلوم دیوبند کې بیخي مکروه ویلي نه دي دا فتاوی دې وکتل شي او په جالی داره خولی کې یې هم صحیح بللی دی البته د پټکي سره ثوابونه زیات دي ، په شامي کې یې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم بې د لمانځه څخه په بعضې او قاتو کې ډېر کم او تنها د خولی ثبوت ذکر کړی دی : وقد صح انه کان لرسول الله صلی الله علیه وسلم قلانس یلبسها - یعني صحیح ثابته شوې ده په تحقیق سره وې د رسول الله صلی الله علیه وسلم لپاره خولیانې چې بعضې وخت به یې په سر کولې.

په خلاصة الفتاوی کې کله چې جلد ثالث خلاص شي یوه رساله ده چې فارسي ده نوم یې ضیاءالقلوب في لباس المحبوب دی په هغه کې ذکر دي چې کولاه یعني خولی په دوه قسمه ده اول : لاطیه هغه خولی ده چې په سر متصله وي او حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په سر مبارک سره ایښې ده ، دوهم : ناشره

هغه خولی ده چې په سر متصله نه وي ورڅخه پورته وي او دغه قسم خولی نبي کریم صلی الله علیه وسلم ډېره کمه په سرا ېښې ده .

خلاصه په سرتور سر سره لمونځ کول مکروه نه دي دا د مفتي عزیز الرحمن صاحب فتوی ده په فتاوی دارالعلوم دېوبند کې یې د منیې د کتاب شرحه غنیه المستملي ته حواله ورکړېده همدا فتوی ده او اما مور او تاسې باید دسنت طریقې سره چې پټکی دی باید لمونځ وکړو څکه زیات ثوابونه لري او دالله جل جلاله نور ډېر زیات حکمتونه پکښې دي.( فتاوی دار العلوم دېوبند) ( خلاصة الفتاوی ۴ج ، ۳۶۹ص) (ردالمحتار ۱ج ، ۴۷۴ص)

## د جُمعې په ورځ د لماسپښین څلور رکعته فرض لمونځ مکروه دی

قدرمنو مسلمانانو د جُمعې په ورځ د لماسپښین څلور فرض په جمعه ( جماعت ) سره کول مکروه تحریمي دي لپاره د معذور او مسجون یعني چې په بندي خانه کې وي په ښار کې او مسافرته که د جُمعې د لمانځه څخه وروسته وي او که د جُمعې د لمانځه څخه مخکې وي او کوم چې نه معذور وي نه بندي وي او نه مسافر وي د هغې لپاره خو په طریقه اولی سره جمعه یعني جماعت کول د څلورو فرضو مکروه تحریمي دي دې مسئلې ته باید چې متوجه شو او بله دا چې کله چې اول اذان وشي باید سعیې شروع شي ، دوکانونه بند شي او که چېرې څوک وروسته د اول آذان څخه د دوکان څخه روان شوی نه وي په دوکان کې اخیستل او خرڅول وکړي ناروا دي او که چېرې په لاره روان وي یوڅه خرڅ کړي او یایې واخلي جائز دي.

## د ویده انسان ویښول د لمانځه په اول وخت کې واجب نه دي

که یو څوک ویده وي نو په اول وخت کې یې راو یښول له خوبه نه دي ضرور یعني واجب او که چېرې وخت تنګ وو نو بیا ضروري دي دامسئله بیري نقل کړېده په شرح الاشباه والنظائر له بدائع څخه او ویلي یې دي چې مانه دي لیدلي په فروعو کې او د اصولو څخه مې نقل کړېده لکن علامه شامي په دې مسئله کې اختلاف کړی دی او ډېر دلائل یې ویلي دي چې دامسئله مطلقه نه ده بلکه دغه قول د بیري په هغه صورت حمل دی چې که بعد دخول الوقت ویده شوی وو نو مخکې مسئله ده.

د ابو سعید خدري رضی الله عنه څخه روایت دی ده ویلي دي : رسول الله صلی الله علیه وسلم به چې کله نوې جامه اغوستله نو په نامه سره به یې یادوله چې دغه پټکی او یا دغه قمیص او بیا به یې دغه دعا ویله : اللهم لک الحمد کماکسوتنیه اسئلک خیره وخیر ماصُنع له واعوذبک من شره وشر ماصُنع له. ( مشکوة شریف ۳۷۵ص ) ، ( رواه الترمذي ، و ابوداوود )

## د اذان په دعا کې لاس پورته کول نه دي ثابت

د آذان څخه وروسته په دعاء کې لاس پورته کول نه دي ثابت (فیض الباري شرح صحیح بخاري مبسوط الامام السرخسي).

## د نوې راختلې میاشتې د لیدلو په وخت کې دعا

د طلحه بن عبید الله رضی الله عنه څخه روایت دی کله به چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم اول میاشت ولیدله یعنې چې میاشت به نوې راختلې وه دغه دعا به یې ویله : الهم اَهِّلْهُ عَلَیْنَا بِالْاَمْنِ وَ الْاَیمَانِ وَالسّلَامَةِ والاِسْلام رَبِّي و ربکَ الله. مشکوة شریف ( ۲۱۴ ص )

## عظیم الشانه دعا

سُبْحَانَ اللهِ وَ بِحَمْدِ هِ عَدَدَ خَلْقِه وَرَضَی نَفْسِه وَ زِنَةِ عَرْشِه وَ مِدَادَ کَلِمَاتِه

ژباړه : پاکي ده الله جل جلاله لره پاکي بيانوم حمد او تسبيح وايم د الله جل جلاله پاکي ده الله جل جلاله لره او حمد دی الله جل جلاله لره په اندازه د شمېر د مخلوق ، په اندازه د رضا د الله جل جلاله ، په اندازه د وزن د عرش ، په اندازه د کلام د الله جل جلاله يعني داټول لايتناهي چې ته شمېر لاندې نه راځي يعني مبالغه مراد ده ، بلانهاية تسبيح بيانوم او بلانهاية حمدونه وايم.

بي بي جويريه چې د امهات المؤمنين څخه ده روايت کړی دی : وايي يوه ورځ نبي کريم صلی الله علیه وسلم سهار ډېر وختي له کوره څخه وووت مسجد ته ولاړ او زه هم د همغه لمانځه په ځای باندې ناسته وم کوم چې همېشه زما دلمانځه ځای وو ، نبي کريم صلی الله علیه وسلم د څاښت لمونځ په مسجد کې کړی وو کله چې راغی نو ويې ويل اې جويريې په همغه ځای تر اوسه ناسته يې تا چې د هغه راهيسې څومره ذکر کړی دی مادغه څلور کلمې دری واره ويلې دي که وزن شي او هغه ستا ذکرونه ورسره وتلل شي نو دغه کلمې به ورسره مساوي شي او يابه ورڅخه درنې شي چې همدغه مخکې ذکر شوې دعا ده گرانو مسلمانانو په ياد يې کړی او دری واره يې وظيفه کوی. ( مشکوة شريف ۲۰۰ص )

## د ملائکې پهره (پيره داري) کول په هغه مؤمن باندې چې د پرېوتو په وخت کې يې يو سورت قرائت کړی وي

شداد بن اوس څخه روايت دی : رسول الله صلی الله علیه وسلم ويلي دي : نشته يو مسلمان چې همېشه محافظت وکړي يعني دغه کار همېشه وکړي چې

یو سورت د سورتونو د قران عظیم الشان ووایي ، الله جل جلاله یوه ملائکه ورته رالېږي او پرې مقرره کوي یې تر سهاره پرې پهره داري کوي دې ضررناکو شیانو څخه یې ساتي او هېڅ شی به ده ته ضرر ونه رسوي.

د حضرت عائشې صدیقې رضی الله عنها څخه روایت دی : هرکله به چې د لماخستنه نبي کریم صلی الله علیه وسلم په ځای کې پرېوتلو نو دواړه مبارک لاسونه به یې سره یو ځای کړل د دعا په شکل سره د اخلاص او معوذتین سورتونه به یې قرائت کړل په لاسونو به یې ورچُف کړل په داسې حال کې چې میده ( واړه ) دې لاړو به ورسره وې او ټول بدن به یې پرې مسحه کولو اول به یې په سر دواړه لاسونه راکشول بیاپه اوږو او ټول بدن څومره به یې چې طاقت وو او دری واره به یې په مخ مبارک داعمل تکرارولو. ( مشکوة شریف ۱۸۶ص ) قدرمنو مسلمانانو دا طریقه عملي کړی نورې دعا ګانې هم نبي کریم صلی الله علیه وسلم ویلې دي خصوصاً پرمخې مه ویده کېږی . زماد مور له طرفه بابا ( نیکه ) مرحوم صوفي غلام حیدر اکا چې د واړه زرین د قریې اوسېدونکی وو دغه طریقه به یې همېشه عملي کوله یعني دغه سورتونه به یې قرائت کول او په لاسونو باندې به یې چُف کول بیابه یې په ټول بدن باندې راکشول.

## دعمرې اداکول

که په یو چا حج فرض نه وي او د شوال په میاشت یا نورو میاشتو کې عمره وکړي او د حج تر وخته پورې پاتې نه شي حج نه پرې فرض کېږي دا مسئله مولانا اشرف علي تهانوي په خپله فتاوی کې ذکر کړېده.

## که حاجي جماع وکړي

که حاجي مفرد په عرفات کې له درېدو ځخه مخکې یو ځل جماع وکړه بیایې دوهمه جماع وکړه که داجماع ګانې په یوه مجلس کې شوې وي یو ( دم ) لازمېږي. او که په دوه مجلسونو کې جماع ګانې شوې وي نو دوه ( دم ) لازمېږي په قول د امام ابي حنیفه او ابویوسف رحمه الله. اوکه حاجي مفرد له خپلې ښځې سره جماع وکړه وروسته له وقوف یعني درېدلو د عرفات ، نو حج یې نه فاسدېږي که قصداً وي او که ناسیاً کذا في فتاوی قاضي خان او په هر یوه مېږه او ښځه (دم ) ، « بدنه » اوښ یا اوښه لازمېږي. او که یې دوهم ځل جماع وکړه ، که په یوه مجلس کې وه بیاله دواړو جماع ګانوځخه یوه یوه بدنه په مېړه او ښځه لازمېږي یعني په هر یوه باندې یوه یوه. او که په دوه مجلسونو کې دا دوه جماع ګانې شوې وي نو د اول جماع به یوه یوه بدنه یعني اوښه او د دوهمې جماع به یو یو پسه په هر یوه مېړه او ښځه وا جبېږي داپه قول د ابو حنیفه او ابویوسف (رح)دي. هندیه (۱ج ، ۲۴۵ص ). که حاجي مفرد جماع وکړه پس له حلق او له طواف زیارت نه مخکې نو بیا (دم) پسه پرې لازمېږي او که یې جماع پس له دری ګردشه طواف د طواف زیارت وکړه نو «بدنه»اوښ پرې لا زمېږي او حج یې وشو کذا في شرح الطحاوي او که یې طواف د زیارت وکړ پس له دې یې جماع وکړه مخکې له حلق نه نو دم پسه پرې لا زمېږي. هندیه ( ۱ج ، ۲۴۵ص )

که عمرې واله دوه ځله جماع وکړه په مجلسینوکې یعني په دوو مجلسوکې دوه پسونه پرې لازمېږي ، همدارنګه که پس له سعیې یې جماع وکړه حکم مخکنی دی (کذافی الایضاح). اوکه حاجي قارن جماع وکړه مخکې له دې نه چې د عمرې طواف یې کړی وي حج یې فاسد شو دې حج ته به دوام

ورکوي بل کال به بیا حج او عمره یعني قران حج به کوي او ( دم ) د قِرَان پرې نشته حج یې فاسد شوی ( کذا فی المحیط ) او په دوی باندې دوه دوه پسونه دي (کذا في محیط الامام السرخسي (رح). که قارن جماع وکړه پس د عمرې له طواف څخه خو د عرفات د درېدو مخکې حج یې فاسد شو ، عمره یې نه ده فاسده او دوه ( دم ) دي ورباندې او د حج قضا راتلونکی کال ورباندې لازمه ده او په قِرَان باندې دې دغه فاسد حج (دم ) نه لازمېږي ورڅخه سا قطېږي.

## عمره په په کوم وخت کې افضله ده

علامه شامي صاحب او دې در مختار مصنف هر یو وایي ، عمره د رمضان ( روژې ) په میاشت کې نسبت نورو میاشتو ته افضله او مستحب ده دلیل یې د عبدالله ابن عباس رضی الله عنه څخه رانقل شوی حدیث دی ، هغه وایي : د رمضان د میاشتې په روژه کې د عمرې ثواب له حج سره برابر دی ، یعني اِنعامي ثواب د حج له حقیقي ثواب سره او هر چې حقیقي ثواب دی هغه خو ډېر فرق لري ځکه حج فرض دی او عمره سنت ده ، نو د سنتو ثواب کله له فرضو سره برابرېدلای شي ، بیا تکرار چې ښه واضح شي په دې احادیثو کې نبي کریم صلی الله علیه وسلم ترغیب ورکوي مسلمانانو ته چې عمره هم ډېر ثواب لري یعني د عمرې حقیقي ثواب د حج له حقیقي ثواب سره نه بلکې د حج له انعامي له ثواب سره برابر دی او د مسلم شریف په حدیث کې داسې راغلي دي ، رسول الله صلی الله علیه وسلم وایي : د رمضان د میاشتې په روژه کې عمره کول داسې دي لکه زما سره یې چې حج کړی وي ، او سلفو علماوو یعني مخکنیو علماوو به عمرې ته حج اصغر ویلو. علامه علي قاري صاحب په یوه رساله کې چې د الادب في رجب په نامه ده لیکلي چې بعضو په رجب کې عمره سنت بللې ده ، هغه دا چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم په رجب کې کړې ده او د امر کولو خبره یې نده ثابته

شوي. بلکه هغه وخت چې عبدالله بن زبیر د کعبې شریفې له جوړولو څخه فارغ شو ، نو په رجب میاشت کې یې ډېر اوښان ذبحه کړل او اهل مکه یې امر کړل په عمرې باندې چې عمرې وکړي ، ځکه چې شکر د الله جل جلاله په ځای شي ، شامي صاحب وايي په دې کې شک نشته چې د صحابه کرامو عمل حجت او دلیل دی او حدیث شریف هم دی ما رآه المسلمون حسنا فهو عندالله حسن.

حج زموږ د پیغمبر صلی الله علیه وسلم په امت فرض شوی ، په مخکې امتونو کې حج وو خو فرض شوی نه وو. ( طحطاوي ، کتاب الحج )

## نفل حج بهتره دی که دغه پیسې صدقه کول

دې درمختار عالم وايي د اسلامي هېوادونو سرحدات مُحکمول بهتره دي له نفلي حج څخه یعني د نفلي حج د پیسو مصرفول په جهاد کې په دې وجه چې دغه اسلامي هېواد د کفارو د تجاوز څخه مطلق وساتل شي بهتره دي ، خو په صدقه کې اختلاف دی په بزازیه کتاب کې یې نفلي حج ته تر جېح ورکړې په صدقه باندې ځکه په حج کې هم بدني تکلیف وي او هم مالي او دی وايي چې امام ابوحنیفه رحمه الله په همدې فتوی ورکړېده ، علامه شامي صاحب په ( ۲ ج ، ۲۷۵ص ) کې ویلي : دا مسئله فرق کوي که چېرې نفلي صدقه د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د اهل بیت یو محتاج ته ورکړې نو ثواب یې ډېر نفلي حجونه او عمرې نه شي پوره کولای ، بیایې یوه کتاب ته حواله ورکړې چې یو وخت یوه ډله حاجیان حج ته روان وو ، په لاره کې د دغې ډلې حاجیانو څخه چې حج ته یې قصد کړی وو د یوه حاجي مخې ته یوه ښځه راغله چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د اهل بیت څخه وه او ورته ویې ویل ډېره احتیاجه یم او د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د اهل بیت څخه یم ، نو ده ورته هغه ټولې پیسې ورکړې

او نفلي حج ته ولاړ نه ، کله چې هغه حاجیان د حج څخه راغلل نو دی به چې د هر یوه سره مخامخ کېدو دغه نفر چې د حج څخه پاتې شوی وو او پیسې یې صدقه کړې وې ، نو دوی به د حج مبارکي ورکوله ، دی ډېر په تعجب کې شو او بیایې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په خوب کې ولید ، ورته ویې ویل چې ته تعجب کوې د خلکو دغو خبروته الله جل جلاله ستالپاره حج قبول کړ او ستا په صورت الله جل جلاله یوه ملائکه پیداکړه ستا لپاره یې حج وکړ او تر قیامته به ستا لپاره حجونه کوي ځکه نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورته وویل چې تا زما د اهل بیت د ډېرې محتاجې زنانه عزت او اکرام وکړ ، مسلمانانو د اهل بیتو احترام کول او دا بحث په مجموع رسائل بن عابدین کې وګوری.

## حج اکبر

علامه نوح یو عالم دی ده په خپله یوه رساله کې ویلي ، حج اکبر هغه دی چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په کې حج کړی او دا مشهوره ده چې عُبَادلَه ثلاثه یعني عبدالله ابن عباس ، عبدالله ابن عمر او عبدالله ابن زبیر وایي حج اکبر هغه دی چې د عرفې ورځ د جمعې له ورځې سره برابره شي ، ذکر شوي دواړه خبرې تقریبا سره موافقې دي ، ځکه د نبي کریم محمد صلی الله علیه وسلم حج همداسې وو چې د عرفې ورځ د جمعې له ورځې سره برابره وه ، د مجاهد په نامه عالم وایي حج قران ته حج اکبر وایي او حج اِفراد ته حج اصغر وایي. زُهْرِي ، شُعْبِي او عطاء وایي حج اکبر فرضي حج ته وایي او حج اصغر عمره ده. په الشر نبلالیه هم یادېږي چې زیلعې د شرح کنز څخه نقل کړی دی ، وایي کله چې ورځ د عرفې له جمعې ورځې سره برابره شي نو ثواب یې افضل دی او ثواب یې له اویا( ۷۰ ) نورو حجونو سره چې د عرفې ورځ یې د جمعې له ورځې سره نه وي راغلې برابر دی ، اګر چې شامي صاحب وایي : یو عالم په دغه قول د

علماوو چې دغه حدیث رزین روایت کړی اصل نه لري ، لکن امام غزالي صاحب هم په احیا علوم دین کتاب کې ذکر کړی دی او مخکې زیلعي هغه هم ډېر قوي کتاب دی هغې هم ذکر کړی دی.

## حج الصرورة

هغه حج ته وایي چې په خپله یوسړي حج نه وي کړی او د بل چا په ځای باندې حج کوي ، قدرمنو مسلمانانو حج صروره مکروه تحریمي دی یعني کله چې یو څوک د چا نائب وي په فرضي حج کې که چېرې دغه کس فرضي حج نه وو کړی او بل چا پرې حج کاوه په داسې حال کې چې اصیل عاجز وي د حج د اداکولو څخه یعني هغه څوک چې په بل چا باندې حج کوي په خپله عاجز وي د ادا کولو څخه نو د دغه سړي لپاره چې په داسې سړي باندې حج کوي چې خپل حج یې نه وي کړی دې ته حج صروره وایي دا حج مکروه تحریمي دی خلاصه دا چې ښه پوه شی مسلمانانو که چېرې څوک عاجزه شو له ادا کولو د حج څخه او ښه مالداره وو نو باید په داسې سړي باندې حج ادا کړي چې هغه په خپله باندې حج کړی وي او په حج عن الغیر یعني فرض کې علماوو شل شرطونه ابښي دي چې په فقه کې ذکر دي خصوصاً په الفقه الاسلامي وادلته ( ۳ج ، ۲۱۰۶ص ) کې یعني په فرض حج کې په نیابة عن الغیر کې ( ۲۰ ) شرطونه شته او که داسې شخص یې ورته وکړي چې خپله یې نه وي کړی همدغه صرورره دی. علامه ابن عابدین وایي چې حج صروره جائز دی یعني د هغه اصیل چې په اصل کې حج پرې فرض دی او اوس عاجز دی د اداکولو څخه یې خو اوس یې پیسې ورکړې داسې کس ته چې حج راته وکړه چې زما غاړه خلاصه شي نو په دغه رقم سړي باندې یې چې وکړي چې هغه خپله حج نه وي کړی نو د دغه مخکني سړي خو غاړې پرې خلاصېږي لکن په داسې سړي باندې یې کول

مکروه تحريمي دی په الفقه الاسلامي ( ۳ج ، ۲۱۱۰ص ) کې دوکتور وهبة الزحيلي ويلي دي د احنافو علماء د دې رقم سړي حج چې په خپله عاجز شوی وي د حج له ادا کولو څخه بيايې په بل داسې سړي باندې کوي چې هغه خپل حج نه وي کړی مکروه تحريمي دی.

ويجوز احجاج الصرورة ولکن يجب عليه عند رؤية الکعبة الحج لنفسه وعليه ان يتوقف الی عام قابل ويحج لنفسه أوأن يحج بعد عودة أهله بماله وإنْ فقيرا فليحفظ والناس عنها غافلون.

علامه شامي صاحب وايي او يوه لوی عالم ته چې علامه نابلوسي دی حواله ورکوي هغه په دې مسئله باندې مستقله رساله ليکلې ده چې په دغه سړي باندې چې دا خپل حج يې نه دی کړی او حج فرض عن الغير کوي په ورتګ سره نه پرې فرض کېږي او يو بل عالم يې ياد کړی چې علامه سيد احمد بادشاه دی هغه بيا مستقله رساله په دې باندې ليکلې ده چې په دغه سړي باندې حج فرض کېږي. اګر چې دا مسئله مخکې د اشرف علي تهانوي په حواله کې ذکر شوې چې مجرد په ورتګ سره نه پرې فرض کېږي.

که يو څوک داسې مريض وي چې په خپله د حج کولو څخه عاجز وي نو بل کس حج ته لېږلی شي او د فرض غاړه يې خلاصېږي که چېرې داسې مرض وي چې بيايې د جوړېدو اميد نه وي او عذر يې دايمي وي او که چېرې داسې مرض وي چې اميد د جوړېدو يې شته نو بيايې عجز تر موته يعني مرګه پورې شرط دی ، که دايمي نه شي نو بيا به يې خپله کوي او که ترمرګه پورې عاجز وي نو بيايې د بل حج مسقط دی ده لره . که چېرې زوی د پلار لپاره حج وکړي تبرعا احسان ورسره کوي او پلار مړ شوی وي او په حج يې وصيت هم نه وي

کړی نو د پلار د فرض حج غاړې ان شاءالله خلاصېږي دا خبره علامه شامي کړې ده. ( فتاوی تنقیح حامدیه ۲ج ، ۱۴ص ).

## کومه ځمکه چې معلومه نه وي چې عشري ده که خراجي څه حکم لري

هغه ځمکه چې معلومه نه وي چې دا خراجي ده که عشري نو حکم یې دادی چې عشر به ورکوي او که حکومت د عشري ځمکې څخه خراج واخلي نو بیا هم عشر شته عشر نه ساقطېږي. فتاوی دارالعلوم دېوبند اراضي العجم عشرية ( ۱۲ج ، ۲۳۲ص ).

یعني کومې ځمکې چې غانېمینو مسلمانانو وېشلې وي هغه ځمکې چې د کفارو څخه یې په زور سره فتحه کړې وي او بیایې وېشلې وي دا عشري ځمکې دي او عشر پرې لازم دی او کوم وطنونه چې په صلح فتح شوي وي ، په همغه د وطن په خلکو باندې په خپل حال پرېښودل شوې وي ، بیایې خراج یا جزیه پرې مقرره کړې وي خراجي دي. خراج او جزیه ذلت یعني ذلیل توب دی د کفارو لپاره ، نو کومې ځمکې چې د مسلمانانو په لاس کې وي او دا معلومه نه وي چې عشري دي که خراجي ، حکم یې د عشري دی ، ځکه د مسلمان دشان سره لایق او مناسب عشر دی نه خراج. مفتي عزیزالرحمن په خپله فتاوی دارالعلوم دېوبندکې کتابونو ته حوالې ورکړې ده. فتاوی دار العلوم دېوبند ( ۱۲ ج ، ۱۹۵ص ).

## مهمه مسئله

خام خیرات دې مړي په اوله ورځ هم کولای شي او له پاخه څخه ډېر ثواب لري. ( مشکوة شریف ، ۵۷۳ص ). علامه طحطاوي وایي مصنف د شرعة الاسلام وایي : والسنة ان يتصدق ولى الميت له قبل المضى المدة اى الیلة

الاولی بشیئ مما تسیر له فان لم یجد شیئا فلیصل رکعتین ثم لیهدثوابهما له قال ویستحب ان یتصدق علی المیت بعد الدفن الی سبعة ایام کل یوم بشیئ مما تیسر. معنی سنت دي داچې تصدق (صدقه او خیرات وکړي) هغه که نقدې وي او که هر رقم صدقه (خیرات) وي ، دې مړي ولي مخکې له دې نه چې اوله شپه تېره شي صدقه کولی شي هر شی چې وي صدقه یې د کړي ځومره چې د ده قدرت وس او توان وي او ده ته آسانه وي هغه دې صدقه کړي اوکه یې هېڅ شی نه درلودل نو او لیاء یې دې دوه رکعته لمونځ وکړي او دې مړي ته یې دې ثوابونه وروبښي . دغه عالم ویلي : دې مړي دې ولي لپاره مستحب دي چې پس له دفن کولو دې مړي څخه هره ورځ تر اوو ورځو پورې یوشی پسې صدقه کړي. په فتاوی عصریه او مجموعة الفتاوی کې راغلي دي که چېرې دې میت (مړي) په ورثه ووکې صغیران نه وي نو فقیران او هغه کسان چې دې جنازې لمانځه ته له لیرې څخه راغلي دي دې مړي له کوره هم ډوډۍ خوړلی شي. ضیافة لفظ چې راغلی دی د هغې معنی داده چې رقم رقم خوراکونه باید تیار نه شي او کوم چې دغه اوس دی داخو خیرات دی صدقه ده فقیران ، مېلمانه او عام خلک یې خوري خصوصاً چې دغه خیرات دې بالغ ورثه له طرفه څخه وي په دې کې ډېره سختي کول نه دي په کار دې حاجي صاحب معصوم جان څخه چې ډېر لوی عالم دی دې هغه شاګردان هم همدغه خبره نقل کړې ده.

## د خپل مال څخه د الله جل جلاله په نامه صدقه ورکول

د ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی : نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل: یو سړی په صحرا کې په یوه ځمکه کې وو نو یو غږ او آواز یې د وریځې څخه واورېدچې وریځې ته ویل کېدل اِسْقِ حَدِیقةُ فلان : د فلاني باغچه اوبه کړه د باغ د څښتن نوم یې یادکړ نو دغه سړي چې دا آواز واورېد وریځ ولاړه او په یو

ځای یې باران و اوراوه چې سېل ځنې جوړشو نو دې سړي چې د ورېځې څخه یې د هغه سړي نوم او رېدلی وو دا د سېل اوبه یې تعقیب کړې که ګوري چې یو سړی دی او دا دسېل اوبه یې باغ ته اړولې دي بېلچه ورسره ده نو د دغه سړي څخه یې پوښتنه وکړه چې یا عبدالله یعني اې د خدای جل جلاله بنده ستا نوم څه دی ، هغه سړي خپل نوم ور ته وښودی همغه نوم یې یادکړ کوم چې ده له ورېځې څخه اورېدلی وو نو دغه د باغ څښتن ترې پوښتنه وکړه چې زما د نوم پوښتنه دې ولې وکړه ده قصه ورته وکړه چې د ورېځې څخه مې آواز واورېد چې ویل یې د فلاني باغ اوبه کړه نو دغه اوبه دهغه ورېځې دي او بیایې ترې پوښتنه وکړه چې ته کوم عمل کوې چې داسې مستقل ورېځې ته ویل کېږي ، امر ورته کېږي چې د فلاني باغ اوبه کړه ده ورته وویل : چې اوس خو تا پوښتنه وکړه نو جواب دادی چې زه د دې باغ حاصل درې برخې کوم : یوه دریمه یې صدقه کوم ، بله دریمه یې زه او زما اولاد خوري او بله دریمه یې په همدې باغ باندې مصرفوم( رواه مسلم ، مشکوة شریف ۱۶۵ص).

## سائل (سوال کوونکی ) باید محروم ونه لېږل شي

د مشکوة شریف په ( ۱۶۶ص ) کې ذکر شوي دي : ام سلمې رضی الله عنها ته غوښه هدیه رالېږل شوې وه او نبي کریم صلی الله علیه وسلم غوښه خوښوله نو ام سلمې رضی الله عنها خادمې ته وویل : کوریې کېږده چې کله نبي کریم صلی الله علیه وسلم راشي نو وبه یې خوري ، خادمې په یوه تاقچه کې کېښوده په دې وخت کې یو سائل یعني سوال کوونکی او فقیر راغی او ویې ویل : تَصَدَّقُوْبَارَکَ اللّٰهُ فِیْکُمْ : صدقه راوړی خدای جل جلاله دې په تاسو کې برکت واچوي نو دوی څه ورنه کړل اوسائل محروم ولاړ کله چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم راغی ، ام سلمې رضی الله عنها ته یې وویل : د خوراک لپاره څه شی نشته ، دې مبارکې ورته وویل : شته ، ام

سلمې رضی الله عنها خادمې ته وويل : ورشه ، غوښه راواخله چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم يې وخوري کله چې هغه خادمه ورغله نو په تاقچه کې يې غوښه پيدانکړه فقط يوه سپينه ډبره ( تيږه ) يې پيداکړه ، نبي کريم صلی الله عليه وسلم ورته وويل : دغه غوښه الله جل جلاله تيږه گر ځولې ده ځکه چې تاسو هغه سائل او فقير ته نه ده ورکړې. مسلمانانو صدقه کوی ځوک چې صدقه نه کوي نو انجام يې په دغه حديث کې ثابت شو او دغه خادمه معذوره ده يعني عذر يې شته او په خپل اجتهاد يې داسې فکر کړی چې نور شی نشته چې کله نبي کريم صلی الله عليه وسلم راشي نو څه به ورته را اخلو. او د مال دری تقسيمه کول په دې رابطه کې په تفسير مظهري کې د بقرې د صاحب د زوی هم دغه عادت وو يو ثلث به يې مورته ورکولو يوثلث به يې صدقه کولو او يو ثلث به يې مصرفولو يعني يو نېک عمل يې دا وو او بېل نېک عمل يې دمور خدمت وو پوره معلومات يې هملته دي.

## د خامو غوښو صدقه کول

د مشکوة شريف په ( ۵۷۳ص ) کې دې عائشې صديقې رضی الله عنها څخه روايت دی : نبي کريم صلی الله عليه وسلم به ډېر کرته يو پسه ذبح کولو او د بي بي خديجې رضی الله عنها خپلوانوته به يې صدقه او خيرات ورلېږلو ، داپسه به يې ټوټه ټوټه کړ، دا خيرات به نبي کريم صلی الله عليه وسلم په بي بي خديجه رضی الله عنها پسې هر وخت د دې له مرگ څخه وروسته کولو ، د خامو غوښو خيرات ډېر ثواب لري او په دغه حديث کې ذکردي : نبي کريم صلی الله عليه وسلم به د بي بي خديجې رضی الله عنها ډېر صفتونه کول چې ډېره روژه داره او لمونځ گذاره وه ، نو بي بي عائشه رضی الله عنها وايي : ما نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته ويل : داسې صفتونه يې کوې لکه په دنيا کې چې بله ښځه نه وي نو نبي کريم صلی الله عليه وسلم به د هغې

ډېرې نېکۍ بیانولې. متفق علیه یعني داحدیث امام بخاري او امام مسلم دواړو روایت کړی دی.

## د قبر په سر پخې خښتې ایښودل

که څوک سرېېره په ظاهر د قبر پخې خښتې اېږدي د دې لپاره چې دا قبر راته معلوم وي جائز دی او د لحد بندولو لپاره بیا مکروه دی. (مجموعة الفتاوی علی هامش خلاصة الفتاوی ۱ ج ، ۱۹۴ ص )

## په قبر کې د مړي ایښودل

مولا نا عبدالحی لکنوي (رح) وایي : په قبر کې مړی په ښي اړخ ایښودل ، مخ او سینه یې قبلې ته کول واجب دي همدا خبره صاحب د درمختار هم کړېده او همدا صحیح ده ، صاحب د نهر فایق شرح کنز دقائق او بحر رائق لفظ د ینبغي ذکر کړی چې د وجوب په طرف اشاره ده. (مجموعة الفتاوی علی هامش خلاصة الفتاوی ۱ ج ، ۲۰۰ ص).

## د مړي په ځای کې طعام پخول

په کوم مکان (ځای) کې چې څوک مړه شوي وي په هغه ځای کې چې همېشه خوراک پخېږي نو معمولي طعام ( خوراک ) پخول جائزدي. (مجموعة الفتاوی علی هامش خلاصة الفتاوی ۱ ج ، ۱۹۹ ص).

## اول د چا په قبر ډېوې ګر ځېدلې دي؟

د مشکوة شریف په (۵۴۵ ص ) ، ابوداود کې ذکر دي : د نجاشي بادشاه په قبر نور او ډېوې لیدل کېدې دا ځکه چې د حضرت محمد ص اصحابو او مسلمانانو ته یې په ډېرو سختو شپو او ورځو کې پناه ورکړه او په لوی اخلاص

سره يې الله جل جلاله ايمان نصيب کړ ، بيا د نبي کريم ص په ژوند وفات شو او حضرت محمد صلى الله عليه وسلم يې غائبانه جنازه وکړله.

## رفع العذاب عن المؤمن والكافر يوم الجمعة و رمضان

علامه شامي صاحب په رد المحتار ( ۱ج ، ۶۱۰ص ) کې ويلي : اهل السنة والجماعة وايي: عذاب القبر و سوال نكير ومنكر و ضغطة القبر حق للكافر والمؤمن العاصي. بيايې ويلي د کافر او مسلمان څخه د قبر عذاب د جمعې د ورځې او رمضان د مياشتې په برکت سره پورته کېږي ، مگر د کافر عذاب په نورو ورځو کې تر قيامته پورې دوام کوي. البته کوم ردالمحتار ته چې زه حواله ورکوم مکتبه حبيبيه چاپ دی ځکه چې په مکتبه کې په صفحو کې فرق راځي.

## د اسماعيل عليه السلام قبر تحت الميزاب

د حجر الاسود او زمزم د کوهي په مابين کې د انبياوو عليهم السلام ( ۷۰ ) قبرونه دي او د اسماعيل عليه السلام قبر د کعبې شريفې د ناوې ( لوداڼې ) لاندې دی.

په فتاوى تنقيح حامديه او د آخري هدايې په ( ۵۷۳ ص ) ( ۵ ) حاشيه کې ذکر شوي دي ، د کوسج چې موږ او تاسو ورته ( کوسه ) وايو يعنې د ږيرې نه درلودونکی ، ( ۲۸ ) غاښونه لري.

ما په يو کتاب کې ليدلې چې لېوني ته پرنجۍ ( عطسه ) نه ورځي ځکه چې پرنجۍ د صحت يا سرېتوب علامه ده.

که یقظان یعني ویښ سړي په قهقه سره وخندل او دس ماتوي که داسې صورت پېښ شي د مثال په ډول چاته په ولاړه خوب ورغی او په دې حالت کې قهقهه خندا ورځخه وشي او دس یې نه ماتېږي خو لمونځ یې باطل شو او بېرته به سلام گرزوي ، بیا به نیت وکړي. همدارنگه که په جنازه کې وخاندي اودس یې نه ماتېږي خو لمونځ یې باطلېږي. (طحطاوي ۷۳-۷۳ص).

که یو مریض د استنجا وهلو ځخه عاجز شو او داسې څوک هم نه وو چې د دغه سړي جماع ورسره روا وه ، یعني که داسې کس موجود وي لکه د مېړه لپاره ښځه ، نو بیا خو ښځه خپل مېړه ته استنجاه ور وهلی شي ، خلاصه که داسې څوک هم موجود نه وي نو استنجاء ورځخه ساقطه ده. ( طحطاوي ۳۸ص ). او د همدې کتاب په ( ۹۱ص ) کې د مریض په اړه داسې تفصیل دی: مریض په څلور (۴) قسمه دی : اول هغه دی چې د اوبو استعمال ، حرکات او ښوربدل ورته ضرر رسوي. دوهم هغه دی چې ضررنه ورته رسوي خو په استعمال یې قادر نه وي ، په دې قسم کې بیا تفصیل داسې دی چې یابه دغه مریض داسې څوک لري چې او دس وروکړي لکه زوی او غیره او یابه یې نه لري نو که یې نه لرلو په دې صورت کې تیمم ورته روا دی اتفاقاً ، دریم که څوک یې لرل چې اودس وروکړي ، داسې څوک چې د مریض اطاعت پرې لازم وي لکه : زوی ، مریی او مزدور نو په دې کې مشائخو اختلاف کړی او د مشائخو په قول د امام اعظم رحمه الله ځخه مختلف روایات راغلي ، یاکه څوک وو خو بې له پیسو ځخه یې اودس نه ورکولو نو تیمم ورته روا دی د امام صاحب په مذهب که پیسې لږ وي او که ډېرې ، او یاران وایي چې تیمم نه دی روا مگر په هغه صورت کې ورته روا دی چې دغه مزدوري فاحشه یعني ډېره زیاته وه ، څلورم قسم هغه مریض چې نه په اوداسه قادر وي او نه په تیمم نه په خپله او نه د بل چا په

واسطه نو امام صاحب وايي ، لمونځ د نه کوي ترڅو چې په يو شي قادر شوی نه وي يا په لمانځه او يا هم په تيمم باندې ، ابو يوسف رحمه الله وايي تشبيه باالمصلين د کوي او بيا به يې وروسته راګرزوي دا خبره مخکې په بل بحث کې په تفصيل سر ذکر شوې ده ، صاحب د بحر الرائق وايي : يو د زوجينو څخه يعنې مېړه او ښځې ته نه دي واجب دې مرض په حال کې اودس ورکول يو بل ته يعني ضروري نه دي پرې نو په حال د مرض کې مريضه ښځه يا مريض مېړه يو د بل په قادر والي قادر په اوداسه نه بلل کېږي او د طحطاوي د کتاب مصنف چې د دخانيې کتاب حواله يې د استنجا په مسئله ورکړې اختلاف ته اشاره وکړه ، خو آخره خبره د بحر رائق قوي معلومېږي. ( طحطاوي ، ۹۱ص )

## زيارة القبور للرجال والنساء جائز

دې نارينه وو لپاره خو د قبرونو په زيارت کولو کې څه مشکل نشته بلکې په احاديثو کې شته او سنت دي ، علامه طحطاوي صاحب وايي : علامه عيني په شرح دې صحيح بخاري کې وايي : اصح خبره داده چې دې ښځو لپاره زيارت القبور جائز دی ځکه چې بي بي فاطمه رضی الله عنها به دې حضرت حمزه رضی الله عنه دې قبر زيارت ته دې هرې جمعې په ورځ ورتلله او حضرت بي بي عائشه رضی الله عنها به دې خپل ورو عبدالرحمن دې قبر زيارت ته ورتلله. همدارنګه فاتحې او تعزيې ته دې ځوانې ښځې تلل جائز نه دي ( طحطاوي ۵۱۰ص ).

مسلمانانو وروڼو همدغه علامه عيني ويلي دي : په اوس زمانه کې چې دې فتنو زمانه ده او اهل دې زمانې ، وسايل دې عکاسی يعني خصوصاً دغه زموږ اوس دې مبايلونو په زمانه کې ښځو ته خصوصاً د ځوانو ښځو لپاره زيارتونو ته تلل مکروه څه بلکې حرام دي. لکه همدغه مسئله ده چې دې ښځو

تلل مسجدونو ته قدوري هم مکروه ګڼلي دي ، ردالمحتار هم وايي علامه عيني خپلې خصوصاً دې مصر زنانه ښودلې دي. مسلمانانو په اصل کې يې تلل روا دي خو لکه څنګه چې مخکې وويل شول نه دې ځي ، که چېرې ټول شرايط موجود وي لکه : حجاب او يا نارينه خپل محرم څوک ورسره وي تللی شي خو لکن دغه دې اوسنيو ښځو تلل خو بېخي مکروه دي. ( طحطاوي ۵۱۲ص ، رد المحتار ۶۵۸ص ).

و عن علي رضی الله عنه ان النبي صلی الله عليه وسلم قال : من مر علی المقابر فقرء قل هوالله احد احدی عشرة مرة ثم وهب ثوابها اجرها للاموات أُعْطي من الاجر بعدد الاموات. ( رواه الدار قطني )

حضرت علي رضی الله عنه روايت کړی : نبي کريم صلی الله عليه وسلم وويل : څوک چې په قبرونو تربېږي ( ۱۱ ) يوولس ځلې سورة اخلاص دې تلاوت کړي او ثواب يې دې مړو ته وبښي ( هبه ) يې دې کړي الله جل جلاله به د مړو دې شمېر په اندازه اجر او ثوابونه ورکړي چې هر څومره مړو ته يې چې دا ثواب وربښلی وي نو بايد دې مؤ منينو ټول مړي ياد کړل شي ترڅو د موهوب لهم ثواب زيات شي يعني دې ويونکي ثواب به زيات شي. بعضې علماء وايي : الله جل جلاله به د موحدينو دې شمېر په اندازه دې ( آدم ) عليه السلام څخه تر دغه وخته پورې دې دې ټولو په اندازه اجرونه او ثوابونه ورکړي دغه ويونکي ته چې يوولس ( ۱۱ ) ځلې يې سورة اخلاص ويلی او ثواب يې مؤمنينو مړوته سپارلی دی. بعضې علماءوايي : دغه ويونکي ته به الله جل جلاله دې ټولو انسانانو دې شمېر په اندازه هغه که کافر وي او که مؤمن وي دې آدم عليه السلام دې وخت څخه تر دې وخته پورې په دومره اندازه نېکی ورکړي د يادونې وړده چې دغه ويونکي ته به په دغه شمېر او اندازه سره ثواب ورکړي ، دې الله جل جلاله دې رحمت واسعه سره

همدغه قول مناسب دی نو وروښو مسلمانانو کله چې هدیرې ته تللی اول داسې سلام اچوی السلام علیکم یا اهل القبور یغفرالله لکم انتم سلفنا ونحن بکم للاحقون. بیا درود ووایی او یوولس (۱۱) ځله سورة اخلاص ووایی په آخر کې بیا درود ووایی او ثواب یې ټولو مړو ته وبښی. (طحطاوي، ۵۱۴ص)

## کله چې جنازه دې قبر په غاړه کېښودل شي نو خلک باید څه وکړي

قدر منو مسلمانانو چهارپایي دې جنازې چې هدیرې (جرګې) ته یو ړل شي او دې قبر په غاړه کېښودل شي پس له دې باید خلک کښېني او ونه دربېږي یوازې هغه کسان چې کار کوي یاتیږه (ډبره) را اخلي او یا بل ضروري کار کوي دربېدلای شي مسلمانانو وروښو دغه مسئله یې په ردالمحتار کې ډېره ښه واضح کړېده او بدائع ته یې حواله ورکړېده چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به اول په قبر ولاړ وو ترڅو به چې مړی په قبر کې ایښودل کېده. یوه یهودي وویل: موږ به هم همداسې کول نو رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابه وو ته وویل: مخالفت وکړی له یهودو سره او وروسته له دې چې جنازه ایښودل کېده نو تاسې کښېنی ګرانو مسلمانانو دا کار مکروه تحریمي دی داخو پرېږدی اوس ټول خلک ولاړ وي. (رد المحتار ۱ج، ۶۵۸ص).

## کوم بادشاه (حاکم) چې قرآن او شریعت نه نافذوي

په ابن ماجه کې حدیث شریف دی: واذا لم تحکم ائمتهم بکتاب الله الاجعل الله بأسهم بینهم. عبدالله ابن عمر رضی الله عنه روایت کړی دی: هرکله چې د مسلمانانو حاکمانو قرآن نه نافذولو نو الله جل جلاله به داسزا او عذاب ورکړي چې دوی به په خپل مابین کې په جنګونو سره مبتلا کړي دغه وجه ده چې الله جل جلاله په اسلامي نړی کې خپل عذاب نازل کړی دی تاسو وګوری مسلمانانو نن

ورځ څه نه دي روان په دې ملک کې د اسلامي نړی حاکمان باید بین الملل ته په ابتداکې یا اوس کفري نړی ته قناعت ورکړي چې موږ مسلمانان خپل قرآن او شریعت لرو موږ نشي مجبورولی ځکه موږ ته زموږ په شریعت کې د ژوند اصول او مسائل د ژوند د هر اړخ د پاره موجود دي نو زموږ شریعت وایي :
ښځه او نارینه ګډ ( یوځای ) تعلیم نه شي کولای محترمو مسلمانانو د ښځې تعلیم ته که عصري دی که اسلامي خصوصاً طب ته اشد ضرورت دی او پرې مکلف یو چې ښځه طبقه مو دین زده کړي ډاکتري زده کړي ولې د اسلامي حکومت د ا مسئولیت دی چې ټوله اداره یې جدا کړي. مثلاً دولت کولای شي چې ښځواو نارینه وو ته جدا جدا وزارتونو ، ریاستونو ، پوهنتونونو جوړ کړي یا د مثال په طور سره که چېرې اقتصاد ضعیفه وي نو په اسلامي حجاب ملبس دوه ټایمه مکاتب او پوهنتونونه د ووایي ( سهار تر دوولسو بجو نارینه او وروسته له دوولسو د زنانه درسونه ووایي ) ولې د افسوس زمانه ده دا هېڅ امکان نه لري ورخ اوبو وړی دی په دې خبرو پورې د کفري آزاد ژوند خو ښوونکي خاندي او اسلامي حاکمانو په کفري نړۍ باندې یوه اسلامي ماده نه ده منلې او نه یې پرې منلی شي او په مسلمانانو یې هرڅه منلي مسلمانانو متوجه شی ښځه چې د جماعت په لمانځه کې د سړي په بغل ودرېږي او امام یې نیت کړی وي لمونځ فاسدېږي ، آذان یې مکروه او ناجائزدی خو په یوه مېز سره کښېناستلی شي اوس خو علما تحریفونه کوي د آیتونو او احادیثو داسې معنی ګانې کوي چې هغه د احادیثو شارحینو نه وي کړې اوس داسې ژوند دی چې موږ دین د خپل ژوند په باره د ځان تابع بولو او حال دا چې موږ باید د دین تابع و اوسو ، ورونو بیادرته وایم دین ، شریعت او قرآن الله جل جلاله پوره او کامل رالېږلي دي او د ژوند ټول اړخونه په کښې تشریح شوي دي دا مسائل په

تفاسیرو د قرانکریم فقه حنفي او احادیثو کې پوره تشریح شوي دي چې زنانه او نارینه په کوم شکل او په کومو اصولو تعلیم وکړي د کومو اصولو په چوکاټ کې ، موږ علماء وایو چې هرڅه دې دې شریعت په چوکاټ کې وشي خو افسوس دغه پته به په قیامت کې لګیږي چې اسلام څنګه نافذ وو.

## رَش الماء علی القبر

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی : حضرت محمد صلی الله علیه وسلم به د حضرت بلال بن رباح رضی الله عنه په قبر باندې په لاسونو اوبه اچولې د قبر مبارک د سرڅخه د پښو وطرف ته.

د جعفر بن محمد او هغه یې د پلار څخه روایت کړی دی : نبي کریم صلی الله علیه وسلم د خپل زوی ابراهیم په قبر اوبه وپاشلې ، وړې وړې سپینې شګې یې پرې واچولې او درې لپې خاورې یې د قبر څارا ته چې خاورې یې ور اړولې ور واچولې نو موږ به درې بېله ( بېلچې ) خاورې استحباباً وراچوو فقها وایي په اول بېل به دغه الفاظ وایي : مِنْهَاخَلَقْنَاكُمْ او په بل بېل به دغه الفاظ وایي وَفِيْهَانُعِيْدُكُمْ او په دریم بېل به وایي وَمِنْهَانُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَى. د مراقي الفلاح او درمختار مصنفین وایي ولا بأس برش الماء علی القبر لکن علامه شامي صاحب او علامه طحطاوي صاحب وایي : ینبغي یعني ضرور ده مستحب دی رش الماء علی القبر په دې کې ډېر حکمتونه دي چې علماوو بیان کړي دي نو مسلمانانو ورونو اوبه هدیرې ته ډېرې وړی او په قبرونو یې اچوی په هغه قبرونو باندې چې نوي او تازه وي.

## تدواي كول په څو قسمه دي

**عن ابي هريرة** رضی الله عنه **قال قال رسول الله** صلی الله علیه وسلم **ما انزل الله دآ ء الا انزل الله له شفاء.** ( رواه البخاري )

قدرمنو مسلمانانو د حديث شريف معنی داده : **حضرت محمد** صلی الله علیه وسلم **وويل** : الله جل جلاله **هېڅ مرض نه دی پيداکړی مګر د هغه لپاره يې دوا پيداکړې ده. د حضرت جابر** رضی الله عنه **څخه روايت دی** : الله جل جلاله **هېڅ مرض نه دی پيداکړی مګر الله** جل جلاله **دوا ورته پيداکړې ده کله چې دوا ورته ورسېږي نو مريض باذن الله جوړ شي ( د الله** جل جلاله **په اجازه سره ) يعني يو خو دوا الله** جل جلاله **پيداکړې ده او بيا چې شفا وربانديې مرتبه ده هغه هم الله** جل جلاله **ورکوي.** رواه مسلم قدرمنو د احاديثو په کتابونو کې ډېر احاديث موجود دي او دغه يو دراز او طويل بحث دی چې د مشکوة شريف ( ۳۸۷ص ) باندې کتاب الطب والرقی په دې کتاب کې هغه احاديث دي چې د طب دمونو او تعويذونو په باره کې راغلي دي. عجيبه خوداده ، الله جل جلاله د مچ په يوه وزر کې د مرض ميکروب او په بل وزر کې ورته دوا پيداکړې ده.( مشکوة شريف ۳۶۰ص ) نو نبي کريم صلی الله علیه وسلم وايي کله چې مچ د څښلو په شيانو کې لکه : اوبو او شيدو کې واقع شي نو مچ هغه د مرض وزر مخکې په کې غوټه کوي او هغه بل وزر پورته نيسي نو تاسو ټول ورغوټه کړی وروسته مچ وغور ځوی او بيايې وڅښی. البته که چېرې په ګرمو اوبو او ياګرم چايو کې وو بيايې مه څښی.

## که چېرې د نصف څخه زيات بدن پيداشي اګر که بې له سر څخه وي

که چېرې له نصف څخه زيات بدن پيداشي اګر که بې له سر څخه وي نو غسل به هم ورکوي او د جنازې لمونځ به هم پرې کوي او همدارنګه که چېرې

نصف سره له سره وو بیابه هم په دغه مړي د جنازې لمونځ هم کوي او غسل به هم ورکوي او که چېرې بې له سره څخه نصف وو نو بیا به نه غسل ورکوي او نه به د جنازې لمونځ پرې کوي.

که چا په ژوند باندې د ځان لپاره قبر وکیندلو او تیار یې کړ نو باک نه لري یعني پروا نه لري لکه عمر بن عبدالعزیز و الربیع بن ختعم او یاپه وروستیو وختونو کې لکه علامه شامي صاحب چې تیار کړی وو له ابوبکر رضی الله عنه څخه روایت دی : ابوبکر رضی الله عنه یوکس ولید چې کلنګ یې اخیستی وو او د ځان لپاره یې قبر تیارولو نو ابوبکر رضی الله عنه ورته وویل د ځان لپاره د قبر مه تیاروه ځکه ځان د قبر لپاره تیار کړه یعني نصیحت یې ورته وکړ چې قبر نېک اعمال غواړي نېک اعمال باید وکړو. ( طحطاوي ، ۵۰۸ ص )

په قبر کې چې مړی ور کښته کوي نو باید قبر ته طاق نفر ورکوزشي او مراقي الفلاح عالم ویلي دي طاق نفر سنت دي که جفت وي هم فرق نه کوي ځکه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د کوزولو لپاره هم څلور کسان کوز شوي وو چې علي رضی الله عنه ، عباس رضی الله عنه و ابنه فَضَل په څلورم کې اختلاف دی بعضو صهیب ، مغیره ، ابورافع او بعضو صالح ښودلی دی. ( طحطاوي ۵۰۲ص )

## د بعضو پوښتنو کول ګناه ده!

وعن معاویه رضی الله عنه انه قال نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم عن الأُغلُوطات. رواه ابوداوود. په ذکر شوي حدیث کې نبي علیه السلام د داسې پوښتنو څخه منع کړېده چې علمأپه غلطی کې واقع کړو لکه چیستانها او معمی ګانې مولانا علي قاري صاحب په مرقات شرح مشکوة شریف کې وایي چې دا نهې تحریمي ده او دا له دریو وجهو حرام دي یو دا چې دا ایذأ

(ضررسول) دي مسلمان ته او ضرر رسول مسلمان ته حرام دي بل په دې چې دا اظهار د فضيلة د سوال كوونكي دى په مسؤل باندې بل دا چې دا سبب د فتنې او عداوت گرځي داسې پوښتنه كول گناه ده او كه يو څوک داسې سخته پوښتنه په ذكر شوو شرايطو او نيتونو سره وكړي او بل نفر د ده په جزأ كې داسې سخت سوال وكړي دا دوهم گناهگار نه دى بنا په دې آيت : فَجَزَاء سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِثلُهَا او يو مثال يې د داسې پوښتنې بيان كړى چې د هارون الرشيد باد شاه په حضور كې د امام شافعي (رح) څخه سختې پوښتنې وشوې او ده ډېر تېز جوابونه وركړل په آخر كې يوه ډېره سخته پوښتنه ترې وشوه چې هغه يې حل نه كړه او حيران پاتې شو نو د هغې پوښتنې صورت ته هارون الرشيد اشاره وكړه او جوړه يې كړه پوښتنه داسې وشوه چې يو سړى مړشو (۶۰۰) دراهم ترې پاتې شول د دغه سړي خور ته يو درهم رسېدلى داڅنگه مسئله ده او نور ورثه څوک دي دا مسئله څنگه جوړېږي د دې مسئلې د حل څخه عاجز شو چې بيا هارون الرشيد هغه مسئله داسې حل كړه ( ام ، زوجه ، اثناعشر اخا ۱۲ ، اخت ، بنتين ۲ ) خلاصه مسلمانانو كه علمأيى ، طالبان يى او ياهم عام مسلمانان يى د داسې سوالونو د كولوڅخه چې په هغه كې معمى گانې او يا چيستانونه وي ډډه وكړي ځگه چې د مسلمانانو درول ، سپكول ، د ځان پورته بلل اظهار كول دا حرام دي. لكه يو بل حديث هم په مشكوة شريف كې راغلى : من طلب العلم ليجارى بهاالعلمأ نو نبي عليه السلام د داسې علم څخه منع كړې ده يعني چې بيابه مقابلې كوم له نورو علماوو سره ذكر شوى بيان په مرقات (۱ ج ، ۴۵۹ ص ) كې ذكرشوى دى.

## د نصوارو ، سګرېټو او چلم حکم

علامه شامي رحمه الله د چلم ، نصوارو او سګرېټ په هکله خپل حکم داسې کړی دی : داشیان مباح دي او شرعاً مکروه نه دي مکروه طبیعي دي خو سړی پرې ګنهګارېږي نه. البته په مسجد کې یې کول د اوږې او پیاز حکم لري یعني بدبویي ده همدارنګه د قرائت په وخت کې هم ګناه ده او د توک دانی ابنودل په مسجد کې ګناه او مسلمانانو ته ضرر دی ، شریعت هم د ضرر رسولو څخه منع کړې ده او د مساجدو په پاکوالي یې حکم کړی. خو روژه پرې ماتېږي حتی بعضو علماوو د کفارې لازمېدو خبره کړېده (فتاوی دار العلوم دېوبند). خلاصه : د اسلام علماوو دری قوله ویلي دي (حرام ، مکروه ، مباح ) او هرچاچې په کې کتابونه لیکلي دي مباح دي که څوک پوره تفصیل غواړي نو د (ردالمحتار ۵ ج ، ۳۲۶ ص ) دې وګوري.

## حکم شرب الدخان ( د سګرېټ او چلم څکولو حکم )

مخکې په دې خبره باندې بیان لیکل شوی دی ، افتي ائمة الاعلام بحرمة شرب الدخان المشهور فهل يجب علينا تقليد هم و افتاء الناس بحرمته ام لا فلنبين لک ما يزيل غريب الشک عن حق اليقين بعد تمهيد ما حققه أئمة أصول الدين قال شارح منهاج الوصول الى علم الاصول للامام ابى عبدالله بن أبي القاسم على بن عمر البيضاوي و يجوز الافتاء للمجتهدين بلا خلاف وكذا المقلد المجتهد و اختلف في جوازتقليد الميت المجتهد فذهب الاكثرون الا انه لم يجز والمختار عندالامام والقاضي البيضاوي الجواز و استدل الامام عليه فى المحصول بانعقاد الاجماع على جواز العمل بهذالنوع من الفتوى اذليس في زمانه مجتهدا آه وكلام الامام صريح فى انه لم يكن في زمانه

مجتهد فكيف زماننا الآ آن شروط الاجتهاد لاتكا د تجدتوجه لهواء لاء الائمه الذين افتوا بتجريم التنباک ان کان فتوا هم عن اجتهاد حتى يجب علينا تقليد هم فاجتهاد هم ليس بثابت واما عن مجتهد ثبت افتاؤه فی الکتب فهوا يضاكذالک اذلم يرد في كتاب ولم ينقلوا عن دفتر في افتائهم مايدل على حرمته فكيف ساغ لهم الفتوى وكيف يجب علينا تقلدهم والحق فی افتاء التحليل والتحريم فی هذا الزمان التمسک باالاصلين اللذين ذكرهما البيضاوي فی الاصول ووصفهمابانهمانا فعان فی الشرع الاول ان الاصل فی المنافع الاباحة والماء خذ الشرعي الايات ثلاث الاولى قوله تعالى خلق لكم مافی الارض جميعا واللام للنفع فتدل على ان الانتفاع باالمنتفع به مأ ذون شرعا وهو المطلوب الثانية قوله تعالى قل من حرم زينة الله التی اخرج لعباده والزينة تدل على الانتفاع الثالثة قوله تعالى : احل لكم الطيبات والمراد باالطيبات المستطابات طبعا و ذالک يقتضي حل المنافع باسرها، والاصل الثاني ان فی المضار التحريم والمنفع لقوله عليه السلام لا ضرر ولا ضرار فی الاسلام وايضا ضبط اهل الفقه حرمة التناول اما باالاسكار كاالبنج واما باالاضرار باالبدن كاالتراب والترياق او باالاستقذار كاالمخاط والبزائق وهذا كله فيما كان طاهرا، و باالجمله ان ثبت فی هذالدخان اضرار صرف خال عن المنا فع فيجوز الافتاء بتحريمه وان لم يثبت انتفاعه فاالاصل حله مع ان فی الافتاء بحله دفع الحرج عن المسلمين فان اكثرهم مبتلون بتناوله مع ان تحليله اَيْسر من تحريمه وما خُيِّرَ رسول الله صلى الله عليه وسلم بين امرين الا اختار ايسرهما و اما كونه بدعة فلا ضرر فانه بدعة فی التناول لا فی الدين فاثبات حرمته امر عسير لايكاد يوجد له نصير نعم لواضرببعض الطبائع فعليه حرام ولو نفع ببعض وقصد به التداوي فهو مرغوب ولو لم ينفع ولم يضر. دا د علامه شامي

رحمه الله تحقیقات دي د سګریټو چلم یعني دود څکل (څکول)، علامه شامي صاحب د دې شیانو څکول حرام ونه ګرزول او دا یې په آخر کې وویل چې د دغه شیانو حرام ګرزول په شرعي دلائلو سره ډېره سخته خبره ده که څوک پوره دلائل غواړي ملتقط د مولوي عبدالستار بلوچستاني چې زما استاد هم دی دې هغه کتاب وګوری او د ډېرو کتابونو حوالې په کې ذکر دي. (فتاوی تنقیح الحامدیه لعلامه شامي رحمه الله، مکتبه امداد یه ۲ج، ۳۶۶ص)

## د غابښ ډکول

د غابښ ډکول، پوښ کول د ضرورت په اساس چې کله غابښ معیوب وي جائز او مباح دی اودس او غسل یې دواړه کېږي. (کفایة المفتي ۲ ج، ۲۶۲ ص)

## د ښځو د وېښتو د غوڅولو حکم

په درمختار او ردالمحتار کې راغلي دي: وفی المجتبی قطعت شعر رأسها اَثِمَتْ ولعنت معنی: که ښځې د سر وېښته قطع کړل نو ګنهګاره شوه او د الله ج لعنت پرې شوی نو مسئله داده د ښځې د سر د وېښتانو قطع کول حرام دي او هغه حدیث چې د مسلم په (۱ج، ۱۴۸ص) کې راغلي دی وکان ازواج النبیص یأخذن من رأو سهن حتی تکون کاالوفره. نو امام نووي وايي چې د دې څخه معلومېږي چې ښځه وېښته د سر قطع کولای شي. محترمو مسلمانانو امام نووي زمونږ د مذهب عالم نه دی او زمونږ دمذهب عالم علامه شبیر احمد عثماني په فتح الملهم شرح صحیح مسلم کې په (۱ج، ۴۷۲ص) کې داسې بیان کړی یعنې د دې حدیث معنی یې داسې بیان کړې ده: وې ازواج یعني بیبیانې عقد یعني جمع او راټولول به یې وېښته د سر شا طرف ته چې داسې به

شوې لکه وفره څوښې ( چې د غوږو څخه يې تجاوز نه وي کړی ) او د دې لپاره چې ضفائر يعني کوڅی به يې نه کولې لکه چې زړو يا کونډو ښځو به کولې ، او بله فايده د دې راټولولو څخه داوه چې اکثره وخت چې وېښته په شا پراته وي دې ښځې نو کېدای شي چې لاندې ځای وچ پاتې شي. نو د دې حديث مطلب قطع کول نه دي بلکه په سر راټولول شاطرف ته دي. محترمو مسلمانانو خپلې ښځې د سر د وېښتو د غوڅولو څخه پس د مراهق په توبه منع کړی. ( ردالمحتار ۵ج ، ۲۶۱ص او الاشباه والنظائر ۳ج ، ۳۸۱ص او امداد الفتاوی ۴ج ، ۲۲۸ص ، مجموعة الفتاوی )

## کوم شيان نجس دي

بول الخفاش و خرؤه طاهر لايفسدالماء و لاينجس الثوب ، خفاش ( شوپرک ، آسمان ځکلکی) د خفاش متيازې نجسې نه دي نه اوبه فاسدوي او جامه نه نجسه وي . (حاشيه طحطاوي ۳۰ص ) ، ( بحررائق ۱۷،۱۲ ص ) ، نفع المفتي ۱۷ص ).

فاقدالطهورين ( چې نه اوبه وي او نه خاوره ) ياقائمام د خاورې چې څوک تيمم پرې ووهي نو امام ابو حنيفه رحمه الله وايي چې لمونځ کول ورته حرام دي او چې کله قادر شو نو د لمونځ به بيا قضا راګرځوي. او امام ابويوسف رحمه الله او امام احمد رحمه الله وايي چې تشابه با المصلي به کوي يعني ظاهري به ځان د لمونځ کوونکي سره مشابه کوي او بيا به يې قضا راوړي او فتوی په قول د امام ابويوسف او امام محمد رحمهماالله عليهما ده.( نفع المفتي والسائل ۲۳ص). په درمختار کې وايي: امام ابوحنيفه رحمه الله ببرته د ابويوسف او امام احمد رحمهماالله عليهما قول ته رجوع کړې ده او وجوبا به دا لمونځ د تشبه په رقم کوي ،

قرائت به نه وايي او نيت به نه کوي يعني محض ظاهري لمونځ به کوي نه حقيقي. ( ردالمحتار ۱ج ۱۸۵ص مکتبه حبيبيه ). تحقيق لفظ الزردج (عصفر) اي «گل زرد» په دي باندې جامې رنګېږي لکه زعفران ( کما فی الکبيري ۸۶ص ) ويجوز التوضي باالماء المخلوط به الزردج حکمه حکم زعفران اذا لم يغلب علي الماء معنی : د دې معنی زردج ده چې په اوبو ګډې شي او دس پرې روا دی تر څو په اوبو غالب نه وي او په ګازرو يې معنی غلطه ده او هغه اوبه چې د ګازرو څخه ايستلې شوې وي او دس پرې ناروا دی او ګازرو يا زردکو ته په عربي کې الجَزَرْ وايي. (هدايه ۴۰ص حاشيه ، شيخ الحديث مولوي عبدالعلي دېوبندي). په منيه کتاب کې مسئله ذکر شوې ده چې په شيدو سره د نجاست حقيقي پاکوالی جائزدی مګر امام حلبي په الکبيري کتاب کې ويلي دي : په شيدو باندې د نجاست پاکوالی نه راځي همدارنګه په نورو کتابونو لکه کفايه ، کافي او نورو کتابونو دا مسئله ذکر کړېده. ( الکبيري ۸۹ص ). د کوترې پليتي طاهره ده نه جامه پليتوي او نه اوبه او لمونځ هم ورسره کېږي يعني څه شی نه نجس کوي او طاوس هم د کوترې په حکم کې دی د دې په پليتی سره هم نه جامه مردارېږي او نه اوبه او کله چې جامې ته ورسېږي نو لمونځ ورسره کېږي. ( نفع المفتي والسائل ۱۸ص حاشيه جديدعلی الهدايه مولوي عبدالعلي دېوبندي).

## ورږه خوړل

### اَوّلُ ماَ يَحلب من الحيوان بعدالولادة لِبَأ فِلَه معنی ورږه

د هر هغه حيوان چې غوښه حلاله وي ورږه يې هم حلال دي په ترمذي شريف ( ۲ج ، ۱۰۰ص ) کې په حديث سره ثابته شوې ده چې نبي کريمصلی الله عليه

وسلم ته راوړل شوي دي. فتاوی واحدي. خو بعضې علما يې مکروه تحريمي بولي : وکره تحريما اللبن النازل من الحيوان عقيب الولادة ما اشتد باالطبح لانه مخلوط باالدم. نهايه شرح هدايه جامع الفوائد ( ۴۰۷ص ) نو دا اول قول قوي دی ځکه حديث په کې موجود دی او اعتبار د دليل قوت ته دی.

## اول وباء مرض په اسلام کې

د مشکوة شريف په ( ۶ ) حاشيه کې چې د مرقات شرح مشکوة شريف څخه ده داسې بيان شوی: د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په زمانه کې په عمواس کې چې د بيت المقدس يوه قريه ده داسې طاعون ولګېدی چې په درې ورځوکې يې اويا زره ( ۷۰۰۰۰ ) کسان مړه کړل چې ډېر صحابه کرام هم په کې شامل وو لکه حضرت ابو عبيده ابن الجراح رضی الله عنه او په دغه ځای کې د مسلمانانو عسکر وو. مشکوة شريف ( ۴۶۶ص ).

## د ډېر عمر واله کسانو په هکله معلومات

د مشکوة شريف په اسمأ الرجال کې او د مرقات شرح د مشکوة شريف په الاکمال في اسمأ الرجال کې داسې راغلي دي : د سلمان فارسي رضی الله عنه چې مشهور صحابي دی عمر ( ۳۵۰ ) کاله وو او په بل روايت کې علما وايي ( ۲۵۰ ) کاله عمر يې درلود خو صحيح خبره همدا د ( ۲۵۰ ) کلونو قول دی. دې تعجب خبره داده چې په ډېره وروستی زمانه کې چې د محمود حسن دېو بندي زمانه ده دغه عالم په خپل تفسير کې چې پښتو او دري ته ترجمه شوی دی او په کابلي تفسير سره مشهوردی يعني د افغانستان علماوو ترجمه کړی د کهف سورة په (۲۵ ) نمبر آيت او ( ۱ ج ، ۱۶۹۵ص ) کې ليکلي دي : د هندوستان په زېشوان علاقه کې يوسړی دی ( ۲۵۲ ) دوه سوه دوپنځوس کاله عمر لري او د

ځلور ویشتمې ( ۲۴ ) ښځې سره ژوند کوي. داخو واضح خبره ده چې مخکې پیغمبرانو ته الله جل جلاله زیات عمرونه ورکړي وو لکه د نوح علیه السلام عمر چې په قرانکریم کې ذکر شوی دی ولې پس له دغه حدیث شریف نه چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وایي زما د امت اکثره عمرونه به ( ۶۰ – ۷۰ ) کلونو ترمنځ وي او کم کسان کېدای شي چې زیات عمر ولري او دمحمود حسن د وفات تاریخ د ( ۱۳۳۹ ق ، کال د ربیع الاول ۱۸ نېټه ده ).

## وړو اولادونو ته ریحان او اولاد ته ثمرات ویل

په سورة بقره کې د والثّمرات څخه مراد اولاد دی او په وَلَنَبْلُوَنکم آیت کې الله جل جلاله فرمايي : زه په خپلو بنده گانو باندې دارنگه ابتلاگانې کوم چې هغه په دغه آیت کې ذکر شوې دي او په همدغه آیت کې د والثمرات لفظ هم دی چې علماوو د دې لفظ څخه اولاد مراد کړی چې د ترمذي شریف حدیث یې په تفسیر کې راوړی دی ، د تفسیر بیضاوي په حاشیه کې یې داسې ذکر کړي دي : کله چې ملائکې د یو چا د اولادې ( د زړه د ثمرې ) روح قبض کړي او الله جل جلاله ته ورشي الله جل جلاله ورته وايي : اې ملائکو! زما د بنده د زړه له ثمرې څخه چې اولاد یې دی روح مو قبض کړ دوی ورته وايي : هو بیا الله جل جلاله ورته وايي : څه حال یې وو که یې ویلي وو چې : الحمد الله ، انالله واناالیه راجعون نو الله جل جلاله ورته وايي : أُبْنُوا له بتیا فی الجنة و یُسَمُّون بیت الحمد. ژباړه : اې ملائکو! په جنت کې ورته مانۍ بناکړی چې د بیت الحمد په نوم سره به یادېږي. نو کوم مصیبتونه چې ذکرشول او یا داسې نور نو موږ الله جل جلاله امرکړي یو: اذا اصابتهم مصیبة قالو انا لله و انا الیه راجعون. اولئک علیهم صلوة من ربهم ورحمه او دغه زېری یې هم راکړی دی. او د مشکوة شریف په ( ۴۰۲ ص ) کې په یو حدیث کې نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي : دغه واړه

هلکان ( اولادونه ) سبب د انسان د بخل گرځي یعني مال او دنیا د دوی لپاره زیاتوي بل چاته یې نه ورکوي ، سبب د بزدلی د انسان گرځي ځکه دوی وایي که جنگ ته ولاړشو نو مړه به شو بیابه زموږ اولاد څه کوي. وَ اِنّهُمْ لَمِنْ ریحان الله ، یوه معنی یې داده چې مور او پلار یې یو وي لکه د ریحان د گل.

## د انسانانو عمه (د پلار خور) د خرما ونه ده

په فتاوی کاملیه ( ۲۶۶ ص ) کې ذکر شوي کله چې الله جل جلاله د لومړي ځل لپاره انسان (آدم علیه السلام ) پیداکړ چې د ټولو انسانانو اصل ( تهداب ) دی ، د هغې خاورې څخه چې کومه خاوره اضافه شوه د هغې څخه الله جل جلاله د خرما ونه پیداکړه چې د ا د خرماونه د آدم علیه السلام خور شوه او زموږ لپاره عمه شوه نو ځکه شرع شریفې ورباندې د عمه نوم کېښود ، او له مسلمان سره یې مشابه کړه او داسې اسرار لري چې په نورو نباتاتو( ونو ) کې نشته. په بخاري شریف کې یو حدیث شریف چې عبدالله بن عمر روایت کړی دی : نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل : هغه کومه ونه ده چې د انسان سره مشابه ده ( نر او ښځه لري ) کله چې نر او ښځه سره یو ځای شي نو الله جل جلاله بل انسان یعني مېوه ترې پیداکوي لکه په دې آیت کې : یخرج من بین الصلب وترائب . صحابه کرامو شجر البادیه وا خیسته عبدالله بن عمر چې د دې حدیث شریف راوي دی وایي مادې خرما ونه ترې واخیسته خو ما حیاءً دا جواب ونه ویلو ځکه مشرانو صحابه کرامو دا ځواب ورنه کړ ځکه هغې ته صحیح جواب معلوم نه وو بیا یې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وکړه ، دا کومه ونه ده هغه مبارک وویل : د خرماونه ده نو عبدالله بن عمر رضی الله عنه وایي: ما دا قصه خپل پلار حضرت عمر رضی الله عنه ته وکړه هغه راته وویل که تا دا جواب کړی وای نو ماته به تر سرو اوښانو بهتره وه.

## اختلافي مسئله

### چرګ یا چرګه چې ذبح شي او بیا تهوله جوش اوبو ته واچول شي د دې لپاره چې بڼکې یې زر ورژېږي

که چېرې چرګ او یا چرګه جوش اوبو ته د جوش والي په حال کې واچول شي ددې لپاره چې بڼکې یې اسانه پاکې شي نو ددې غوښه نجسه ګرزي خو د علماوو بیا په دې کې اختلاف دی ځینې علما وایي چې په درې واره وینځلو سره بیا پاکېږي چې هغه علماوو په دغه کتابونو کې ذکرکړي دي الفقه اسلامي وادلته او فتاوی کامليه ( ۲۶۳ص ) بحواله فتاوی انقروي عن فتاوی ابن نُجَيْم صاحب بحررائق.

او هغه علماچې وایي دا غوښه بیا د ابد ( همېشه ) لپاره نه پاکېږي هغه صاحب د رد المختار ( ۱ ج ، ۲۴۵ص ) متن درمختار ، فتح القدیر ، طحطاوي على مراقي الفلاح ، شرح نور الایضاح ( ۱۲۸ص ) او نفع المفتي والسائل د مولا نا عبدالحی لکنوي صاحب. خو قوي خبره همدغه ده چې دغه غوښه بیا د همېشه لپاره په وینځلو سره نه پاکېږي او نه هم په بله طریقه سره پاکېږي ځکه چې هغه نجاستونه په غوښه کې جذب شوي دي او د برقي ماشین په وسیله سره شرعي  ذبح نه ده صحیح او د خارج څخه د چرګانو را وارد شوې غوښې مرداري دي.

## بیانه (بیعانه)

دا هغه بیعه ده چې مشتري بائع یعني خر څوونکي ته یوڅه پیسې د مبیعې د قیمت څخه ورکړي او داسې ورته ووایي که چېرې ما دغه مبیعه واخیسته دغه بیانه د قیمت څخه حساب ده او که زه پښېمانه شوم نو بیا دغه

بیانه ستاشوه یعني بیانه دلیل د قاطعیت د بیعې ده خو که یې دغه وخت چې انتظار دی محدود وو ( معلوم وو ) نو خلاصه دې خبرې داده کومه خبره چې پورته ذکر شوه دا د فقې اسلامي د عالم نظر وو او کومه چې زموږ د خلکو بیانه متعارفه ده داهم بیعه یقیني کوي ، که چېرې مشتري یعني اخیستونکی پښېمانه شي ببرته حق نه لري چې هغه بیانه له خرڅوونکي څخه واخلي. همدغه پورته ذکر شوې خبره د قانون مدني په ( ۲ ج ، ۱۴ ص ۵۳۱ ماده ) کې ذکر شوي دي او بیعانه اخیستونکی منصرف شی د بیعانې اصلي او دهغې د معادل د ورکولو موجب گرځي. ( الفقه الاسلامي و ادلته ۷ج ، ۵۲۱۸ ص ).

## بولې د موږک ( الفارة ) طاهرې دي ضرورت دی

خرء الفارة لایفسد الدهن والماء والحنطة : دې موږک پلیتي اوبه ، تېل او غنم نه فاسدوي نه یې خرابوي ځکه ضرورت دی ، ترڅو چې یې اثر نه وي ښکاره شوی ، په بحر رائق کې یې ظهیریې ته حواله ورکړېده. واختلف التصحیح في بول الهره : او د پیشو په متیازو کې اختلاف دی چا صحیح دابللي دي چې عفوه دي یعني جامه او فرش نه مرداروي او چا ویلي چې مرداروي یې ، فتوی په دې ده چې د پیشو متیازې عفوه دي ، په دې معنی چې شی نه پرې مرداربږي ځکه فرشونه او کالي ورڅخه ساتل سخت دي ، یو د اوبو په لوښو کې دا حکم نه دی ځکه چې دې هغه سرونه باید پټ کړو او سنت طریقه هم ده په فتح القدیر کې یې همدا خبره حسنه گرځولې ده او همدغه دې امام احمد رحمه الله علیه څخه روایت شوی ځکه ضرورت دی او عموم د بلوی دی. ( تاتار خانیه ).

## هغه ځوک چې د يوې ورځې د خوراک شی ولري سوال کول ورته روا نه دي

په تنوير الابصار ( ۴۹۴ او ۴۹۵ ص ) او شرحه کې يې ذکر دي ، هغه چا ته سوال نه دی روا چې د يوې ورځې د خوراک شی ولري په داسې حال کې چې جوړ وي او مريض نه وي او هغه ځوک چې څه ورکوي گنهگاربږي ، که دې ده په حال خبر وي ځکه چې دغه د ده په حرامو کې اعانة او کومک دی ، خو که ځوک علم زده کوي او يا جهاد کوي ، په دې وجه محتاج وي نو سوال کول ورته جائز دي. او ضرور ( مناسب ) نه دي چې هغه چاته څه ورکړي چې سوال کوي او بيا په هغې کې اسراف کوي ، يا يې د گناه په کارونو کې مصرفوي ، ابو حفص کبير وايي هغه مسکين ته يې د هم نه ورکوي چې بعضې وخت لمونځ کوي اگر که روا کېږي چې وريې کړي.

## لقمه ( لمړی ) ورکول بل ملگري ته سنت ده

مصنف د النتف کتاب د ډوډی خوړلو په سنتونو ، يعني مسنونو طريقو کې ذکر کړي دي : لقمه خپلو اصحابو ته ورکول او د هغوی قبلول سنت دي. ( کتاب الاطعمه ، ۱۵۸ ص ).

## د ډوډۍ خوړلو په وخت کې خبرې کول

دې ډوډۍ خوړلو په وخت کې خبرې نه کول د يهودو سره مشابهت دی يعني مسلمانان به دې ډوډی خوړلو په وخت کې خبرې کوي او زموږ او ستاسو دغه عرف غلط دی چې خلک وايي دې ډوډۍ خوړلو په وخت کې خبرې مه کوه ، بايد خبرې وکړو خو جائزې خبرې ، خير خبرې خوبايد هروخت جائزې وکړو مگر د ډوډۍ په وخت کې ښې خبرې وکړو او پټه خوله بايد پاتې نه شو.

## دې ډوډۍ مسائل

دې ختان ډوډۍ کول سنت دي ‹څوک چې ماشوم سنت کړي ډوډۍ کول سنت دي› ، کله چې دې سفر څخه څوک راشي نو مسافر چې ملمستیا چاته کوي سنت ده ، دې واده دې ولیمې ډوډۍ سنت ده.

د النتف کتاب مصنف د ډوډۍ خوړلو مسائل ډېرښه بیان کړي دي خو دوولس سنت یې بیان کړیدي چې یو له هغې څخه یو چاته لقمه ( لمړۍ ) ورکول او دې هغه قبلول ښودلي دي ( النتف فی الفتاوی ۱۵۷ – ۱۵۸ ص ). مشکوة شریف ( ۲۱۶ص ) وعن عا ئشه رضی الله عنها قالت کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول اللهم اني اعوذبک من شر فتنة الغني ومن شر فتنة الفقر. حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د ې مال دې ډېر والي دې فتنې له شر څخه پناه غوښتې ځکه چې د چا مال او دنیا ډېروي نو کبر او تکبر یې زیاتېږي ، په ناروا ځایونو کې استعمالېدل ، فخر کول ، حقوق الله لکه : عشر ، زکات ، اضحیه ، صدقه فطر و غیره نه اداکول دا فتنه دې مال دی او فتنه دې فقر داده کینه کول له غنیانو سره او دوی ته طمع ، عاجزي او تذلل کول په داسې طریقه چې آبرو او عزت د فقیر تباه وي ، نه راضي کېدل په تقسیم د رزق الهي ، په ( ۴۵۱ ص ) کې حدیث ذکر دی : مخکې به له مال څخه کرکه کېدله خو اوس تاسې مال پیداکړی خو ښه یې اصلاح کړی داسې وخت به راشي چې دې مال په مقابل کې به دین درڅخه ځي او که دغه مال نه وي نو پاچاهان او آمران به دې د پیسو په مقابل کې دستمالونه درڅخه جوړ کړي.

## عقیقه، نسیکه، تطوع نفلي او مستحب ده

قدرمنو مسلمانانو که چاته الله جل جلاله نارینه اولاد ورکړي نو دې تطوع خبره نفلي او مستحب ده چې دوه پسونه به ذبحه کوي خو که یو ذبحه کړي هم جائز ده ځکه نبي کریم صلی الله علیه وسلم دې حسن او حسین رضی الله عنهما یو یو پسه ذبحه کړی وو او دې نجلی عقیقه یو پسه که د چا خوښه وي کول یې نفلي کار دی خو که یې خوښه نه وي نه یې دې کوي البته که دې چا وس او قدرت وي کول یې بهتره خبره ده. په نفلو کې لوی لوی اجرونه شته ، په اوومه ورځ عقیقه کول بهتره ده دې سهار دې لمر ختلو وروسته او دې دغه پسه په نسیکه کې هغه شرطونه دي کوم چې په اضحیه کې دي ، دلته دغه شرطونه استحباباً دي خو دې عیبونو نه به سالم او جوړ وي که چېرې یې له اوومې ورځې څخه ذبحه وروسته کړه او یایې مخکې کړه روا دي خو اوومه ورځ بهتره ده ، او مستحب دي چې غوښې له هډوکي څخه راپوچې او بېلې شي هډوکي یې مات نه شي تفاؤلا د نېک پالی په طریقه چې الله جل جلاله د دغه مولود هډوکي په آینده کې سالم او جوړ وساتي ، ددې څخه خوراک هم کولای شي او صدقه کوي به یې ، دې دغه پسه ورون ( فخذ ) به قابلې ( ډاکترې ) ته ورکوي او یا هغې ښځې ته چې په قریو کې یې دې ولادت په وخت کې راغواړو خو ښی ( راسته ) پښه یا ورون بهتره دی او نبي کریم صلی الله علیه وسلم پس له پیغمبر کېدلو څخه خپله عقیقه کړېده ، گرانو وروڼو مستحب دي چې عقیقې ته نسیکه او یا ذبیحه ووایو. نو عقیقه د هلک څخه دوه پسونه او دې نجلی څخه یو پسه افضل دی حدیث شریف دی : الولد مُرْتهن بعقیقة . ( مجموعة الفتاوی ) یو حدیث شریف په ابوداوود کې راغلی دی چې د عقوق لفظ څخه منع راغلې ده او دې دغه پسه په وینو سره د نجلی یا هلک سر ککړول مکروه دي.

دي ذبح په وخت کې به دا دعاوايي : اللهم هذه نسيکة ای عقيقة ابني فلان ( نوم يې ياد کړه ) فان دمها بدمه و لحمها بلحمه و عظمها بعظمه و جلدها بجلده و شَعْرُها بشعره اللهم اجعلهافداء لابني من النار. هر وخت يې کولی شي خو بعضې علماوو اوومه ورځ سنت او بعضو مستحب بللې ده ، که چېرې د ورځې يو ماشوم پيداشي نو دغه ورځ په اوو ورځو کې نه ده حساب په دې کې د شيخينو اختلاف دی هغه وايي حساب ده او که دې شپې پيداشي بيا دغه راتلونکی سهار ( گهيځ ) حسابېږي مگر دې اضحيې سره يې په احکامو کې فرق دادی چې هلته شرطونه ضروري وو که يو شرط نه وي اضحيه نه صحيح کېږي او په نسيکه کې که هغه شرطونه نه وي نو نسيکه کېږي خو هغه افضليت پاتې شو او بل فرق چې سنت او افضله خبره ده هغه دا چې دې دغه نسيکې غوښه به پخه وي او پوخ ورکول مسکينانو او خپلوانو هرچاته ډېر ثواب لري او که چېرې دغه نسيکه څوک دې عيد او اضحيې په ورځو کې کوي نو په هغه اوو نفرو کې شريکېدلای شي يعني د هغه اووه نفرو شريکانو څخه يو دی هم کېدای شي خو تر اووه به زيات نه وي ، په نوم ايښودلو کې هم اوومه ورځ مستحب ده که چېرې اوومه نه شوه نو بيا به اوومه ورځ په نظر کې نيسي. وروښو دغه مسائل علامه شامي صاحب په ( تنقيح فتاوی حامديه ٢ج ، ٢٣٣ص ) کې ذکر کړيدي.

## د خطيب يا واعظ لپاره مهمه مسئله

علامه شامي صاحب وايي تنبه عادت جاري دی کله چې خطيب وايي قال الله تعالی او وروسته وايي اعوذ باالله من الشيطان الرجيم من عمل صالحا الخ په دغه طريقه سره داسې توهم کېږي او د چا په ذهن کې داسې واقع کېدل دي چې دغه اعوذ باالله الخ مقوله د الله جل جلاله ده او داسې بايد نه شي په دغه

رقم باندې ډېر واعظين وايي. شامي صاحب وايي : بعضې د دغه طريقې څخه ځان خلاصوي قال الله تعالى كلاما اتلوه بعد قولي اعوذ باالله الخ علامه شامي صاحب وايي مقصد په سنت استعاذې سره د اعوذ باالله ويلو سره انشاء دې استعاذې ده او دغه مخكې كومه طريقه چې ده په دې حكايت د استعاذې دی نه انشاء د استعاذې. فاالاولى ان لايقول قال الله تعالى نو علامه شامي صاحب وايي : ډېره بهتره داده چې ونه وايې قال الله تعالى كومه مخكې طريقه چې ده او شامي صاحب د علامه اسماعيل جراحي شارح البخاري په دې مسئله باندې مستقله رساله ليكلې ده.

## تعزير وركول په اور سره

په درمختار ، فتح القدير او غيره كتابونو كې علماوو مختلفې سزاګانې تعين كړې دي ، مسلمانانو ورونو په زناكې څلورو شاهدانو ته ضرورت دی او په لواطت كې دوه شاهدانو ته ضرورت دی نو كه چېرې دوه كسانو شهادت ادا كړ او لواطت ثابت شو نو حاكم او امام امر وربانديې كولای شي او له غره څخه يې راغور ځولی شي ، له لوړ تعمير څخه يې راغور ځولی شي او په اور يې سوځولی شي خو نور په اور باندې دې ژوندي موجود سوځول نه دي جائز يو شاه انور شاه كشميري په فيض الباري شرح صحيح البخاري كې ويلي دي : زنبوران ( منګس ) كه وسوځول شي جائزده. دې لواطت عمل دې لوط عليه السلام قوم اول اجرا كړی دی او الله جل جلاله تباه او برباد كړی ځمكې يې وربانديې اړولې دي په قرانكريم كې يې واقعه ذكر ده آيت شريف : وَ جَعَلْنَا عَالِيَهَاسَافِلَهَاوَ اَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ حِجَاره الايه : الله جل جلاله وايي دې ځمكې بر طرف مو لاندې پرې وګرځولو ، جبرائيل عليه السلام ښارونه پورته كړل او په بل

مخ يې واړول. الله جل جلاله مو دې دي بد عمل څخه وساتي.فتح القدير وايي څوک چې دې لواطت عادت ولري هغه دې حکومت مړ کړي.

## ساحر بايد قتل شي

هغه څو ک چې دې جادو اقرار وکړي هغه که مسلمان وي ، ذمي وي ، اصيل وي او که عبد ( مريې ) وي نو قتل يې جائز دی. ( فتاوی الحدود والتعزيرات ۱۷۷ص ). فتح القدير وايي د ساحر توبه نه قبلېږي.

مالي جرمانه ( تعزير ) په شريعت کې شته خو دابه ساتل کېږي که حکومت وي په بانگ او يا خزانه کې به يې ساتي او دې عادي خلکو سره يې هم ساتلی شي خو يو څه وخت وروسته به يې بېرته خپل څښتن ته ورکوي او مالي بوديجې ته يې داخلول دې شريعت خلاف کاردی. دامسئله د فقهې کتابونو ليکلې ده لکه : بحررائق ، بدرالفتاوی او نورو کتابونو ( فتاوی تعزيرات ۱۷۶ص ).

## بيت الخلا ته له تعويذ سره د داخلېدلو حکم

درمختار متن رقية في غلاف متجاف لم يكره دخول الخلاء به والاحتراز افضل : هغه تعويذ چې په پوښونو کې وي نو بيت الخلاء ته ورسره ننوتل مکروه نه دي مگر نه وړل يې افضل دي او همدارنگه جنوب لره هم همداسې ده دا خبره د شامي صاحب ده خو شامي صاحب دا خبره هم ورسره اضافه کوي هغه داچې د غه غلاف ( پوښ ) ورڅخه منفصل وي.

مسئله : که څوک د سَکْتې يعني قلبي او د ماغي سکتې تکليف ولري نو د هغې دفن کول دې وځنډوي تر څو يې مرگ يقيني شي علامه طحطاوي

صاحب وايي : دغه سكته تر اتو ( ۸ ) ساعتونو نه زياتېږي نو بايد آته ساعته انتظار ورته وشي او بيا وروسته خاورو ته وسپارل شي ولې بد بختانه چې بعضې خلک همدغه تکليفونه لري خو بيا هم عجله کوي. ( ردالمحتار ۱ج ، ۱۳۱ص )

## د نوروز لمانځل د اسلام له نظره

قدرمنو مسلمانانو کله چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم مدينې منورې ته راغی نو د مدينې منورې د خلکو د بازيو او خوشحاليو دوې ورځې وې ، حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ورته وويل : دا څه دي چې تاسو يې کوی؟ هغوی ورته وويل : دا هغه ورځې دي چې موږ به د جاهليت په وخت کې په دغه ورځو کې خوشحالی کولې نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وويل : نور به په دغه ورځو کې دا کار نه کوی او الله جل جلاله دغه دوه ورځې په دوه نورو ورځو درته بدلې کړې دي ، هغه دوې ورځې له دې نه بهتره دي ، هغه يوه يوم عيد الفطر او بله يوم عيد الاضحی ده. مخکې د جاهليت په دوره کې د خوشحالی ورځې يوه د نوروز ورځ وه او بله د مِهْرُ جان چې د اوړي ( دوبي ) اوله ورځ ده. قدرمنو د مسلمانانو لره په کار ده چې د پيغمبر صلی الله علیه وسلم خبره ومني او د مبارک پيغمبر صلی الله علیه وسلم په خوله چې الله جل جلاله دغه دوه ورځې په دوه نورو ورځو باندې بدلې کړې دي خوشحالي وکړي قدرمنو بعضې کسان وايي چې د نوروز په ناروا والي کې حديث نشته وروښو دغه د ابوداود حديث دی. څوک چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم خبره نه مني او دغه دوه ورځې چې الله جل جلاله په دوه نورو ورځو سره بدلې کړې دي نه مني اول خو د الله جل جلاله ورته هدايت وکړي او که داسې نه وي نو الله جل جلاله د خپل قهر او غضب ورباندې نازل کړي.

مسلمانانو ورونو د خنزیرانو خبرې مه منی دې ته ځکه خنزیران وایي چې د پیغمبر صلی الله علیه وسلم حدیث او دهغه مبارک خبره نه مني زموږ د هدایت لپاره قرآن او سنت رالیږل شوي الله جل جلاله وایي : مَاآ تَاکُمُ الرّسُوْلُ فَخُذُوهُ په هغه شیانو چې زما پیغمبر صلی الله علیه وسلم تاسو ته راتګ کړی دی ویې منی عمل پرې وکړی او مخالفت یې مه کوی او الله جل جلاله په قرآن عظیم الشان کې فرمایلي دي : څوک چې زما د دغه امر مخالفت کوي اُلَئِکَ کَالْاَنْعَامِ بَلْ هُمْ اَضَلُّ ورونو ماچې مخکې کوم الفاظ استعمال کړل په دلیل د مخکیني آیت خلک غلط دلائل وایي مخالفت کوي او د خپلو دیني علماوو خبرې نه مني ، مخکې ما یو حدیث ذکر کړی دی چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په حضور کې یو چا په چپ لاس سره خوراک کولو نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورته وویل : په ښي لاس سره خوراک کوه نو هغه ورته د تکبر په رقم سره وویل چې زما لاس نه پورته کېږي نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورته ښېرا وکړه چې که دغسې نه وي نو الله جل جلاله د لاس مه پورته کوه بیا د هغه سړي لاس د تل لپاره وچ شو ګرانو د رسول الله صلی الله علیه وسلم خبرې ومنی او مخالفت یې مه کوی دغه د نوروز ورځ د مجوسیانو ورځ مه لمانځی. دې نوروز ورځ د فقهاوو له نظره :

د درمختار متن والاعطاء باسم النیروز والمهرجان لایجوز ای الهدایا باسم هذین الیومین حرام وان قصد تعظیمه کما یفعله المشرکین یکفر قال ابو حفص الکبیر لو ان رجلا عَبَدَ اللهَ خمسین سنة ثم اهدی لمشرک یوم النیروز بیضة یرید تعظیم الیوم فقد کفر وحبط عمله آه ولواهدی لمسلم ولم یرد تعظیم الیوم بل جری علی عادة الناس لایکفر و ینبغي ان یفعله قبله او بعده نفیا للشبهة ولو شری فیه مالم یشتره قبلُ ان اراد تعظیمه کفر وان اراد الاکل

والشرب والتنعيم لايكفر زيلعي والنير وزاول يوم الربيع. والمهر جان اول يوم الخريف (اوړي). (ردالمحتار ۵ج ، ۵۳۲ص).

د پورته عبارت معنی : هدايا (هديې) لېږل په نامه د نوروز باندې لکه نن سبا يې چې نوروزي بولي او په نامه د نوروز يې لېږي نه دي روا او دا کار حرام دی ورونو نور نو څه په کې پاتې دي په نامه د نوروزی خلک چې چېرته يې واده کړی وي ورلېږي يې او که چېرې څوک د دغه ورځې تعظيم کوي کافر کېږي لکه څرنګه يې چې مجوسيان او مشرکين تعظيم کوي ابو حفص کبير وايي که چېرې يو څوک پنځوس (۵۰) کاله عبادت وکړي او بيا يوه مشرک ته هديه ولېږي يوه هديه د هګۍ او تعظيم يې مطلب وي نوکافر شو او ټول عمل يې باطل شو او که يې چېرې مسلمان مسلمان ته ولېږي او دې دې ورځې تعظيم يې مطلب نه وي بلکه فقط بنا په عادت د خلکو نو کافرکېږي نه لکن ضروري دي چې داسې ونه کړي بلکه که مخکې ياوروسته ورځو کې يې ولېږي پروا نه لري ورونو علما داسې ځکه وايي چې هسې نه د ابوداوود غوندې د قوي کتاب دې حديث مخالفت راشي. که چېرې چا يو شی د نوروز په ورځ واخيستل ، په نورو ورځو کې يې نه اخيستل اواراده يې تعظيم وي د دغه ورځې نو کافر کېږي او که يې اراده د خوراک ، څښاک او تنعيم (خوند) اخيستلو وه نو نه کافر کېږي. مسلمانانو د الله جل جلاله څخه ووېرېږی کومې ورځې چې الله جل جلاله بدلې کړې دي او د خپل ګران پيغمبر حضرت محمد صلى الله عليه وسلم په خوله مبارکه يې راته بيان کړي دي مخالفت مه کوی. (ابوداوود) ، (ردالمحتار ۵ج ، ۵۳۲ص)

علامه علي قاري صاحب وايي که چېرې يو مسلمان بل مسلمان ته په دغه ورځ کې تحفه ولېږي خو تعظيم يې مطلب نه وي بيا هم تشبيه (مشابهت)

شته نو بیا د کافر کېدو طرف ته میلان لري یعني دامطلب چې داسې کار هم مه کوی ځکه داسې کار خطر ناکه کاردی. ( شرح فقه اکبر ۲۲۹ص )

## سَبُّ الدِیک ( چرګ ته ښکنځل ) کول منعه دي

زید بن خالد رضی الله عنه روایت کړی دی : چرګ ته ښکنځل یعني بد الفاظ کارول حضرت محمد صلی الله علیه وسلم منعه کړي دي او موږ او تاسو یې هم ورڅخه منعه کړي یوځکه نبي کریم صلی الله علیه وسلم وايي : چرګ د بعضو لمونځونو د اوقاتو په را دا خلېدو سره آذان کوي لکه د سهار ( صبا ) کېدو په وخت. ( رواه في الشرح السنه و ابو داوود )

او کله چې ما خپله د بخاري شریف درسونه ویل په هغه دوره کې ما د خپلې مطالعې په وخت کې د بخاري شریف په حاشیو کې ولیدل چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم یو سپین چرګ وو چې د شپې به یې آذانونه ورته کول یعني لمانځه ته به پرې راپورته کېده کوم آذانونه چې خصوصا د صبح صادق څخه مخکې کوي نو که یې چېرې د همدې آذان په نیت سره څوک وساتي ډېر زیات ثواب لري خو بې له دغه نیت څخه یې هسې هم ساتل جائز دي او په ( ۳۶۰ ) صفحه کې ذکر دي نبي کریم صلی الله علیه وسلم به د چرګ غوښه خوړله. ( مشکوة شریف ۳۶۱ص ).

## وَاکفتو اصبیانکم عندالمساء ( الحدیث )

حضرت جابر رضی الله عنه روایت کوي په حدیث شریف کې نور ډېر مو ضوعات ذکر شوي دي خو کومه خبره چې زه رانقل کوم هغه داده قدرمنو چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم موږ او تاسو ته شفقتاً وايي : خپل ماشومان او واړه هلکان د ماښام تیاره کېدو په وخت کې تنها مه پرېږدی له ځانه سره یې یوځای

کنبښنوی او ویې ساتی ځکه چې په دغه وخت کې جنیات یعني پېریان ډېر یو او بل خواته تیت کېږي او دوی لره اختطاف شته لکه دا په بعضو وختونو کې شوي ما چې کله درسونه ویل خلکو به داسې قصه کوله چې د شش قلعې دې قریبې کوم هلک په آبدره نومي قریه کې اختطاف شوی وو او بیا چېرې د کلي په شاوخوا کې مړ پروت وو. والله اعلم نو مسلمانانو وروڼو کوم حدیث چې ذکر شو عمل پرې وکړی قدرمنو زموږ او د مسلمانانو جناتو ترمنځ نکاح حرامه ده په درمختار کې دغه مسئله ذکر شوې ده. قدرمنو د جناتو په اړوند که څوک معلومات غواړی نو زموږ د مذهب معتبر کتاب آکام المرجان فی احکام الجان وګوری عجیبه مسائل پکې ذکر دي چې اوس دغه کتاب په پښتو هم ترجمه شوی دی. ( مشکوة شریف ۳۷۲ص )

## په مسجد کې خوراک کول د شریعت له نظره

وعن عبدالله ابن الحارث بن جزء قال اُ تِيَ رسول الله صلى الله عليه وسلم بخبز ولحم وهو فی المسجد فاکل و اکلنامعه. الحدیث رواه ابن ماجه

عبدالله بن الحارث روایت کړی چې نبي کریم صلى الله عليه وسلم ته ډوډی او غوښه راغله نو ویې خوړله او موږ هم ورسره وخوړله کېدی شي چې معتکف به وو او یا لپاره د جواز یعني دا معنی چې په مسجد کې خوراک روادی. ( مشکوة شریف )

## له مغمی علیه او داسې مریض چې د کُمَا په حالت کې وي

قدرمنو مسلمانانو که چېرې حاجي ته داسې مریضي پېښه شي چې حج نه شي کولای نو خپل ملګری او رفیق د دغه مریض لپاره د حج افعال کولای شي د دغه حاجې حج ادا کېږي خو دلته تفصیل دی که دغه مرض یعني د مثال

په توګه که څوک حج ته روان شول موټر ټکر وکړ چې دغه حاجي حالت د کُوما ته ولاړ حالت یې داسې د اغماء دی نو که چېرې دغه حالت د احرام څخه مخکې وو نو ملګري به یې په وخت د احرام د دغه سړي د احرام نیت هم وکړي ټولو افعالو دحج ته به دوام ورکړي او که د احرام څخه وروسته دغه حالت پېښ شوی وي نو بیا که دغه مریض د اغماء په حالت کې وي ضرور به دغه مریض د یوې لحظې لپاره د مستشفی یعني شفاخانې موټر د عرفات میدان ته وړي او طواف زیارت به هم ورباندې کوي ځکه امکانات یې اوس شته ، نو که چېرې د دغه ملګري څخه کوم جنایت وشي جزا په دغه مریض حاجي لازمېږي او که احرام د دواړو دغه ملګري تړلی وو نو که کوم جنایت وشو د دواړو څخه یوه جزا لازمېږي تداخل شته بدون د قارن څخه په هغه باندې بیا دوه جزاګانې لازمېږي متعددې جزاګانې تفصیل په ردالمحتار ( ۲ج ، ۲۰۴ص ) کې.

## صبي ممیز هلک چې په ښه او بد پوهېږي

بعضې علماوو د صُبي ممیز هغه هلک ته ویلی دی چې که چېرې پیسې ورکړې چې ورشه له دوکان څخه مثلاً د شلو روپو یوشی راوړه او تا د پنځوسو روپو لوټ ورکړ نو که دغه هلک هغه باقي حساب له دوکاندار څخه وغوښته یعني پرې پوهېده چې زما دومره حساب ورباندې پاتې دی دې ته صبي ممیز وایي نو اوس مسئله داوری چې د صبي ممیز احرام تړل د حج نه صحیح کېږي خیر حج خو یې نفلي دی نوکه یې پلار ورسره وو احرام او ادا یې د دغه زوی له طرفه وکړي یعني هر هغه چې ډېر ورته نیژدې وي احرام به د ده له طرفه تړي ، که حج کوي که عمره د دغه هلک به هم وکړي. ( ردالمحتار ۲ج ، ۲۰۵ص )

د مشکوة شریف په اسماء الرجال کې دي اقرع بن حابس صحابي له خپل اسلامي لښکر سره جوزجان ته ورسېدا د افغانستان جوز جان ولایت ته او دغه صحابي د حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت په زمانه کې وفات شوی نومعلومه شوه چې د افغانستان شمال ته اسلام د حضرت عمر رضی الله عنه په وخت کې راغلی دی بیاورسته نور د حضرت عثمان رضی الله عنه او حضرت علي رضی الله عنه په وخت کې راغلی دی.

که تریاق یا افیون لږ وي او د تداوی لپاره وي نو جائزدي لکه بعضې خلک تریاق د بعضو مرضونو لپاره استعمالوي او که ډېروي او نشه راولي بیاحرام دي. (ردالمحتار ۲ج ، ۳۲۵ص)

## شهادة باالتسامع

د اورېدلو شاهدي ورکول لکه چې یو څوک داسې ووایي موږ شاهدي ورکوو په دې باندې چې موږ اورېدلي وو چې دغه ملکیت د فلاني دی دا شهادت صحیح نه دی او په بعضو شیانو کې صحیح دی لکه : نصب ، نکاح او موت ډېره مهمه مسئله که چاداسې شاهدي ورکړه چې موږ دغه موضوع یعني د هرشي په هکله چې شهادة ورکوي نه دی معاینه کړی او حاضر نه وو لکن زموږ په نزد ببخي مشهوره ده دغه موضوع نو په دغه رقم شهادة د شاهدانو صحیح دی. (تقریرات رافعي ، تحفة القضاة ۱۱۵ص)

په اقرار د صبي یا هلک چې په یوه جنایت یې وکړي هېڅ نه لازمېږي او د هلکانو په شهادت هم هېڅ نه لازمېږي. (خلاصة الفتاوی ۴ ج ، ۲۵۱ص ، فتاوی تنقیح حامدیه علامه شامي ۲۷۴ص)

## د مرعي (چراګاه) د ځمکې بيع رواده

د هدايې په باب البيع الفاسد بحث کې متن دی : ولايجوز بيع المرَاعی ولا اجارتها والمراد الکلاء : قدرمنو مسلمانانو مسئله مختصره ذکرکوم او د تفصيل لپاره يې کتابونو ته حواله ورکوم يوه معنی د مرعې واښه او ګیاه ده او بله معنی يې ځمکه ده د هدايې د قول څخه معلومېږي چې په دغه عبارت کې يې ويلي دي : ګياه ځنې مراد ده او ځمکه ورڅخه مراد نه ده يعني د ګياه د مرعې معنی چې ترې واخلې نو بيع او اجاره يې ناروا ده او مُحَشّيِ په حاشيه کې وايي هرکومه چې بيع د ارض مرعي ده د هغې بيع رواده او فتاوی فصول عمادي ويلي که چېرې تقسيم شي تقسيم يې هم روا دی کومه حواله چې حاشيې د هدايې ورکړې ده هغه يې عيني ته ورکړېده او فتح القدير او کفايه کتاب ته زما مرحوم بابا يعني نيکه د پلار پلار ملاصاحب سيدعلم په خپلوقلمي حاشيو کې چې په اخيرينه هدايه يې کړې دي حواله ورکړېده په هدايه (۳۸ص) باندې. بيا دا خبره درته ليکم چې مرحوم ملاصاحب جيد عالم د لويو مدرسينو علماء کرامو استاذ تېر شوی دی او د افغانستان په ګوټ ګوټ کې يې شاګردان مدرسين علما تېر شوي دي چې ما په دې باندې څه ليکنه کړېده خصوصاً د حضرت صاحب نور المشائخ په زمانه کې به چې کومه مشکله مسئله پېښېدله د مرحوم ملاصاحب به چې هر ځای کې ملايي (امامت) وو او تدريس به يې کولو نو د هغې مسئلې د حل لپاره به يې چې په کابل کې د افغانستان علماوو راټولول ضرور به يې مرحوم ملاصاحب سيدعلم ته خط ورلېږه او را غوښت به يې چې د نور المشائخ فضل عمر مجددي سره دوه کاله د ميدان ښار د ابراهيم خېلو په ملا صاحب د طالبی په دوره کې همدرسي وو.

د مرحوم ملاصاحب سیدعلم او مرحوم نورالمشائخ ترمنځ مخلصانه ملګرتیا زما کاکا مرحوم غلام سرور آخندزاده صاحب به ماته قصه کوله چې زما پلار یعني مرحوم ملاصاحب سیدعلم جناب حضرت صاحب ته په مخکې وختو کې یو چرګ وروړی وو چې دا چرګ مخکې زموږ په کور کې وو نو بیا یې ډېر وخت وروسته زه حضرت صاحب ته ورسره بوتلم قلعه جوات ته دوی دواړه خو سره ملګري وو او په حوېلي کې یې چکر وهلوما چې هغه چرګ ولید زه په هغې وخت کې ډېر کشر وم نو ومې ژړل چې دا خو زموږ چرګ دی دا قصه مې کمه کمه په یاد ده زما کاکا به دا قصه کوله او ویل یې چې زما د پلار شاګرد ملاصاحب عبدالواحد هم ورسره وو نو کله چې ما ژړل حضرت صاحب ماته یو څه پیسې راکړې او زه پرې خوشحاله شوم یوه بله واقعه په لویه پکتیا کې د شاشي په نوم څوک د حکومت نه یاغي شوي وو نو بیا چې کله حضرت صاحب د دې موضوع په هکله کوم علماء راټول کړي وو مرحوم ملاصاحب سیدعلم ته یې هم خط ورلېږلی وو او زما کاکا به ویل : هغه خط زموږ د پلار په کتابونو کې شته یعني ده به ویل چې هغه د حضرت صاحب خط او د مرحوم ملاصاحب یو څه کتابونه زما سره شته او څه زما د کاکا د زامنو سره شته خو ما تراوسه د مصروفیتونو په وجه نه دي لیدلي.

د مرحوم ملاصاحب سیدعلم او نورالمشائخ ترمنځ مینه محبت په اړه زما مرحوم کاکا غلام سرور آخندزاده به ماته قصه کوله چې زما پلار به خپل دغه شاګرد چې عبدالواحد نومېده د لوګر ولایت د قاضیانو څخه وو چې تر آخره عمره پورې د ملاصاحب سره د شېخي په قریه کې ملا وو او بیا د مرحوم ملاصاحب له وفات څخه وروسته هم د شېخي په قریه کې ملاوو او بیا په همدې قریه کې وفات شوی وو او بیایې خپلوانو لوګر ته وړی وو خیر خو هغې

ته يې وصيت کړی وو چې کله زه وفات شوم نو زما زامن به کله کله حضرت صاحب ته ورولی نو زه ملاصاحب عبدالواحد وروسته د خپل پلار ملاصاحب سيد علم د وفات څخه قلعه جواد ته وروستم نو حضرت صاحب غزني ته خپلې مدرسې نورالمدارس ته تللی وو پس شو او موږ شپې ورته وکړې په کابل کې زه ډېر په تنگ او خفه وم چې څه وخت به راځي خير کله چې راغی خلک علما او خليفه صاحبان کوڅه ورته ولاړ وو او سترې مشي يې ورسره کول لاس يې ورکولو او ويل به يې خه يې په خير يې خه يې په خير يې کله چې موږ ته راورسېد ملاصاحب عبدالواحد په سترې مشي کې ورته وويل چې دغه د شېخي د ملاصاحب زوی دی نو په مرگ يې خبر شوی وو او د څه مشکلاتو او مصروفيتو په اساس نه وو ورته راغلی او بياچوپه خوله شو او چاته يې ونه ويل چې خه يې په خير يې اوښکې پرې راغلې او خپلې خانقاته ولاړ لږ وروسته يې موږ ته نفر راولېږلو او ويې غوښتلوچې ورغلو زه يې په څنگ کې ورسره کښېنولم او د ملاصاحب څخه يې پوښتنه وکړه ته د کوم ځای يې ده ورته وويل زه د لوگر د قاضيانو څخه يم نو حضرت صاحب ورته وويل ډېرښه هغه ډېره ښه کورنی ده ، بيايې زه په چپنه کې ورتاو کړم او ډېرې دعاگانې يې راته وکړې.

## که چېرې په داسې ډول سره بيع وشي

که چېرې په داسې ډول سره څوک يو شی خرڅ کړي چې هغه سړي ته ووايي که دې دغه شی ته دومره پيسو په زياتو باندې خرڅ کړ هغه زياتې پيسې ستادي نو که چېرې په وکالت کې اجرة شرط شوی وي نو وکيل مستحق د اجرة دی او که چېرې په وکالت کې اجرة نه وي شرط شوی او وکيل هم داسې څوک وي چې خدمت يې په اجرت نه کاوه نو بيا دی متبرع دی نو د ده لپاره د اجرة مطالبه نشته او که داوکيل داسې وو چې په اجرة باندې يې خدمت کاوه نو بيا

د دغه وکيل لپاره اجر مثل دی. ( شرح مجله لسليم رستم باز اللبناني ماده ( ۱۴۶۷ ) مثلاً که يو چا بل چاته وويل چې دغه موټر يا يو بل شی په څلور لکه پيسو باندې راته خرڅ کړه او که دې په زياتو خرڅ کړ هغه ستا مثلاً که دې په شپږ لکه پيسو باندې خرڅ کړ نو دغه زياتې پيسې د چا دي؟ جواب : دغه معامله ناروا او نا جائزه ده دغه زياتې پيسې د همدغه مالک دي او دغه دلال ته د ده دهغه کار اجر مثل د دغه موټر په مالک باندې لازم دی. ( احسن الفتاوی ۷ج ، ۲۷۳-۲۷۴ص ، بدرالفتاوی ۲۴۳ص )

## لمرته په اېښودل شوو اوبو او دس کول

که لمر ته اوبه کېښودل شي ، بياورباندې اودس کول مکروه نه دي ، آخري خبره همداده چې دا خبره د نه کراهيت په تقريرات رافعي على ردالمختار کې ذکرده په ردالمحتار ( ۱ج ، ۱۳۲ص ) کې ډېر اقوال ذکر کړي دي ، بيا په تقريرات الرافعي کې چې په آخر د ردالمحتار کتاب پسې ملحق دی هلته ئې د کراهيت خبره ضعيف گر ځولې ده ، او بيايې ويلي چې د عدم کراهيت خبره قوي ده او بيايې يوه عالم ته دا خبره حواله کړې ده او ويلي يې دي چې په دې مورد کې چې څه روايات منع راغلي دي ټول باطل دي له ټولو طرفو څخه. تقريرات ( ۲۳ص ). او همدا د نه کراهيت خبره شيخ عبدالحق دهلوي د مشکوة شريف په ( ۱ج ، ۲۴۹ص ) کې هم ذکر کړېده چې په دې مورد کې صحيح حديث موجود نه دی او دغه اثر د حضرت عمر رضی الله عنه دی ، خلاصه ټول روايات چې په دې مورد کې راغلي دي په راويانو کې يې کذابان او واضعين شته لکه د انس رضی الله عنه په روايت کې ، شيخ وايي که ثابت هم شي نو دوام دې نه پرې کوي د کوم طبي مشکل په خاطر ، آخره خبره کراهيت شرعي نشته پکښې همدغه د تقريرات خبره قوي ده.

## د او داسه څخه وروسته په منديل (دسمال) باندې لاسونه او مخ وچول

د منيې کتاب د غسل په بحث کې ذکر ده ، علامه شامي صاحب په ردالمحتار (۱ج ، ۹۷ص) کې د علماوو اختلاف ذکر کړی دی چې خلاف په مکروه والي کې دی ، دې خانيې کتاب مصنف ويلي دي ، لابأس باک نشته او دس کوونکي او غسل کوونکي ته ، د استعمالولو د لاس پاک او جان پاک پس له او دس کولو او غسل کولو څخه ، ځکه روايت شته چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم په همداسې کول ، بعضې علماوو دغه دواړه يعني پس له او دس او غسل څخه مکروه بللی دی او بعضې علما وايي ، چې د اودس کوونکې لپاره مکروه او د غسل کوونکي نه دی مکروه ، شامي صاحب وايي صحيح همدغه ده چې مکره نه دی ، مگر ډېره مبالغه دې په وچولو کې نه کوي ځکه چې هغه اثر د اوداسه په اندامونو پاتې وي. په خلاصة الفتاوی (۴ج ، ۳۲۸ص) کې ذکر دي چې ادب د لاسونو په وينځلو کې دادی ، مخکې له ډوډی څخه ، چې اول يې د هلکانو څخه شروع کړي او بيا وروسته مشران لاس پرېمنځي ، او لاس دې ډېر کلک نه پاکوي يعني چې اثر يې باقي وي ، د ډوډي تر خوړلو (شروع کولو) پورې او د ډوډی په آخر کې دې اول مشران لاس پرېمنځي او وچ يې د کړي.

## دوه خويندې چې موازي يعني پيوسته پيداشي نو د نکاح حکم يې

مفتي عزيز الرحمن صاحب وايي ، که څوک داسې پوښتنه وکړي يعني پوښتنه شوې ده ، که دوه خورانې په داسې شکل سره وي چې د يوې ښی کناټی د بلې د چپ کناټي سره سرېښ يعني يو ځای وي ، داسې چې نه يوه يوائې کنښېناستی شي او نه پاڅېدی شي ، بې له بلې څخه او نه او دس ماتې ته تللی شي ، يعني دواړې دغه ټول حرکات يو ځای کوي ، مفتي صاحب ، پوښتنه

کوونکی عالم محمد جمیل وایي : دومره خو مالیدلي ، خو داسې مې له نورو او رېدلي ، چې خوراک هم یو ځای کوي او ویدې کېږي هم یوځای یعني د دواړو خوب یو ځای راځي ، دواړې په یوه رقم باندې مریضانې کېږي او لوی اودس ماتی هم په یو ځای ، طهر یې هم یوځای دی ، دې دیارلسو ، څوارلسو کلونو دي ، خو د لوی اودس ماتي ځای د دواړو بېل بېل دی ، د تش او دس ماتي ځای د یوې شته دی د بلې نشته ، خو کله چې یوه تش او دس ماتی ( متیازې ) وکړي نو بله هم فارغه کېږي د دې لیکلو څخه اوس مطلب دادی ،که چېرې دواړې مسلمانې وي ، یا اوس مسلمانې شوې وي د نکاح حکم یې څنګه دی. : محترمو مسلمانانو که د تاسو په یاد وي او له راډیو ګانو څخه مو اورېدلي وي ، په ایران کې دوې خویندې وې د لاله او لادن په نامه ، یو څو کاله مخکې چې سرونه یې سره څنګ په څنګ وو ، کله یې چې جراحي عملیات کول ، د جراحی عملیات یې څو ساعته روان وو ، چې سره جلا یې کړي خو کامیاب نه شول ، او هغه دواړې خوراني مړې شوې ، څرنګه چې دغه پوښتنه له مفتي صاحب عزیزالرحمن صاحب څخه یو بل عالم کړېده نو ده هغه عالم ته داسې جواب لیکلی دی : دا ډېره عجیبه پېښه ده ، دې فقهې په کتابونو کې دغه رنګه جزئیه مسئله نشته خو د قاعدې نه په صورت مذکوره کې سره عدم جواز ( نه روا والی معلومېږي ). د درمختار عبارت دی نکاح تعریف : هو عقد یفید ملک المتعة ای حل استمتاعا الرجل من امرأة لم یمنع من نکاحها مانع شرعي. او د شامي عبارت یې هم مستقل نقل کړی دی ، د دې عبارتونو څخه معلومېږي ، بطریق الاجمال دومره چې سورة مسؤله عنها کې مانع شرعي د استمتاع څخه شته دی او که د دې لحاظ وشي ، چې د یوې څخه استمتاع ، دا عیناً له بلې څخه ده ځکه مخکې په پوښتنه کې واضح شوه چې هر څه یې داسې دي لکه یو

بدن خو بیایې هم په دغه نص سره حرمت دی ، چې په جمع بین الاختین کې راځي نو نکاح به يې حرامه وي ، لنډه داچې د دغه خویندو نکاح حرامه ده ، که چېرې د جراحی په عملیاتو سره جدا شي ، بیا څه اشکال نشته که استمتاع جماع د یو بلې د پاره کافي کېږي ، نو په دې صورت کې دې دواړې د یوې په حکم کې و ګڼل شي د یو سړي سره په واده کولو کې جمع بین الاختین به نه راځي بلکې دې یوې حکم کول پرې په کارده ، په هر حال مسئله قابل غورده ، دادې مفتي عزیز الرحمن فتوی ده . ( فتاوی دار العلوم دیوبند ۷ ج ، ۴۳۱ ص ). آیا په دې باندې نورو د عصر علماوو هم څه لیکلي دي او که نه ، والله اعلم بحقیقة الحال او په دغه رقم باندې خو نور هم یو ځای تولد کېدای شي بیابه حکم څه وي.

## توکیل الوکیل فی النکاح

د ښځې د نکاح وکیل په خپل سر بل وکیل نه شي نیولی چې هغه عقد وتړي. قال صاحب رد المحتار ان الوکیل لیس له التوکیل فی النکاح : محترمومسلمانانو کله چې ښځې ته دوه شاهدان د وکیل نیولو لپاره ورغلي وي ، چې ته څوک د خپل نفس ، مهر او نکاح لپاره وکیل نیسې ، کله چې نجلۍ د دغه دوه شاهدانو په مخ کې هر څوک وکیل ونیولو ، همغه کس چې دغه نجلی وکیل ګرزولی دی دايې وکیل دی او دا وکیل يې بل وکیل نه شي نیولی ، مسلمانانو دغه خبره ډېره پېښېږي کوم چې مالیدلي او بیا مو په دې خبره باندې پوه کړي دي. ( رد المحتار ۲ج ، ۳۰۰ص مطبع بیروت ). قال فی البزازیه علی هامش هندیه ( ۴ج ، ۱۲۹ص ) مطبع ماجدیه في بحث الوکالة فی النکاح الوکیل لاتصرف یلي التوکیل ، قال فی البحرالرائق ولیس للوکیل ان یوکل الا باذن او باعمل برأ یک. ( بحر رائق ۳ج ، ۱۱۶ص ماجدیه ).

## په تشهد کې په ګوته سره اشاره کول

قدرمنو مسلمانانو په لمانځه کې په مسبحه ګوته سره په تشهد کې اشاره کول کول سنت ده خو طریقه یې داده چې دې نفیې الفاظ وواېې ګوته به پورته کوي په دې الفاظو: اَشْهَدُ اَنْ لّا اِلهَ او په اثبات الفاظو به یې اېږدي چې اِلاّ الله دی ګرانو مسلمانانو په دې مسئله کې جګړه کول په کار نه دي زموږ دې مذهب علماوو ډېر تحقیقات کړي دي لکه علامه شامي په مجموع الرسائل کې مستقله رساله لیکلې ده علامه علي قاري صاحب مستقله رساله لیکلې ده او ویلي یې دي که چېرې دې خلاصې دې کتاب د مصنف خبرې صحیح معنی نه وای نو موږ به کافر بللی وای صحیح معنی یې داده چې اشاره مکروه یعني حرامه ده (تحریک لفظ منهی عنه فی الصلاة کې یې راوړی) لکه دغه خبره چې صاحب د نُتَفْ کتاب کړېده هغه اشاره یې مطلب ده لکه په مجلسونو کې یې چې اهل حدیث کوي مراد دې دې حدیث څخه خبرې دي چې یو بل ته ګوته ښوروي نو ښورول خو یې موږ هم مکروه بولو. ګرانو دنتف کتاب خبره ماخپله را نقل کړه او د هدایې کتاب په (۱۰۲ ص) کې د هدایې عبارت داسې دی ووضع کفیه علی فخذیه وبسط اصابعه ای لم یعقد یعني عقد د ګوتو یې ونه کړ او اشاره یې ونه کړه یعني د هدایې مصنف هم د اشارې نه کولو عبارت نقل کړی دی ، ګرانو مسلمانانو زمادې خپلو شخصي مطالعاتو له مخې زما دې علامه شامي صاحب دا خبره ډېره خوښه ده هغه ویلي : کلاهماقولان مصححان دواړه قوله صحیح دي کول او نه کول یې خو کول یې روایةً او درایةً افضله او بهتره دي نو ګرانو مسلمانانو ورونو کله کله خو یې کوی چې په هغه طریقه هم عمل راشي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم کړېده او که یې څوک نه کوي داهم صحیح ده لکه چې شامي دواړه قوله صحیح ګرزولي په مجموع الرسائل

کې اگر چې کول یې افضله ده نو په اولی بهتره او غیر اولی کارونو جنگونه کول نه دي مناسب. ( طحطاوي ، ۲۱۸ ص ) .

## که د چا مسبحه گوته قطعه وي نو اشاره مسنونه به په بله گوته نه کوي

که د چا مسبحه گوته قطعه وي ، یا مریضه وي نو کومه اشاره چې د امت علماوو ورته مسنونه ویلي نو د ښي یا چپ لاس په نورو گوتو یې نه شي کولی. ( طحطاوي ، ۲۱۸ص ).

## روژه په کوم کال فرض شوې ده؟

روژه د هجرت په دوهم کال فرض شوې ده ، بعضې علما وایي نبي کریم صلی الله علیه وسلم په نهه کاله ( ۹ ) فرضي روژو کې څلور کاله ( ۲۹ ) ورځې میاشت راغلې او په پنځه کالو کې (۳۰) ورځې روژه راغلې ده ، بعضې علما وایي چې په دغه نهه کاله کې یواځې یوه میاشت یې پوره (۳۰) ورځې نیولې او پاتې ټولې میاشتې یې (۲۹) ورځې نیولې ده ، بعضې علما وایي دوه میاشتې یې (۳۰) نیولې دي یعني میاشت کله (۲۹) کله دېرش راځي په دوه کالو کې میاشت دېرش ورځې راغلې او په پاتې کالو کې (۲۹) ورځې راغلې ده والله اعلم بحقیقة الحال. ( طحطاوي علی نورالایضاح )

## محترمو مسلمانانو په دې مسئله کې د علماؤ اختلاف دی چې په کفارات د ایمانو «قسمو» کې تداخل شته او که نشته

که یو چا قسم وکړ په دې الفاظو سره : والله ، والرحمن ، والرحیم تداخل یعني د دریو څخه یو قسم لازمېږي او که عدم تداخل یعني درې قسمونه یا درې کفارې جدا جدا لا زمېږي نو ظاهر الروایة وایي چې تداخل

نشته یعني عدم تداخل دی (دری کفارې لازمېږي) چې همدې خبرې (عدم تداخل ) ته صاحب د البحرالرائق په ( ۴ ج ، ۲۹۱ ص ) ، مکتبه ماجدیه او عالمگیري په ۲ ج ، ۵۶ ص ، مطبع ماجدیه او قاضي خان علی هامش هندیه ترجیح ورکړې ده او همدا عدم تداخل یې صحیح قول بللی دی او صاحب د ردالمحتار وایي : کفارات الایمان اذا کثرت تداخلت او بیایې تفصیل کړی دی چې صاحب د اصل ( مبسوط) ویلي چې دا زما په نزد مختار قول دی نو په دې قول دې شامي یعني رد المحتار باندې یې په تقریرات رافعي کې رد کړی او د شامي قول یې معتمد نه دی بللی. خو صاحب د فتح القدیر په اول د حدودو د بحث کې هم ترجیح نه تداخل (عدم تداخل) ته ورکړې ده نو خلاصه که چا قسم په دې الفاظو سره وکړ چې والله ، والرحمن ، والرحیم پلانی کار به کوم او بیایې ونه کړ یا ددې برعکس حانث شو په قسم باندې نو دری کفارې پرې لا زمېږي.( راجح خبره عدم تداخل دی).

## د میراث څخه د بعضو ورثه وو محرومول گناه ده!

محترمومسلمانانو ستاسو دتوجه وړ مسئله اول عربي عبارت او بیاتشریح:

ولو وهب فی صحته کل المال للولد جاز« وَ اَ ثِمَ » جاز ای صح لا ینقض کل المال للولد ای و قصدحرمان بقیة الورثة الی آ خره. تکمله ردالمحتار ، ج 2 ، ص 352 . خلاصة الفتاوی ، مجموعة الفتاوی ، ج 4 ، ص 392 . د ذکرشوو عبارتونو معنی داده که یو څوک (مُورِثْ ) خپلو بعضو ورثه ووته ضرر رسوي او بعضو ورثه وو ته خپل مال هبه یا تملیک کوي او یا هبه خط یا تملیک خط چې شاهدان پکې موجود وي البته خط په هغه صورت کې چې د جعل او تزویر

ثخه خالي وي داكار په قضا كې صحيح دى يعني دا بقيه ورثه چې (مُورِثْ) محروم كړي دي حق د دعوې نه لري يعني دعوى نه شي پرې كولاى اما په پورته عبارت كې ذكر شول چې دا (مُورِثْ) «اَ ثِمَ» گنهگاردى. نو گرانو مسلمانانو كه څوک د مورِ اوستاسې په اصطلاح ميراث وي نو داسې كار د نه كوي او بعضې ورثه د نه محروموي خپل مال دې هغه شرعي تركې ته پرېږدي چې هر چاته خپل حق ورسېږي او دى به په خپل مال گنهگار نه وي.

نوټ: اگر چې د تمليک او هبې په مقابل كې په بعضې مسايلوكې فرق شته چې هغه د ذكرشوي كتاب يعني تكمله رد المحتار على درمختار په 386 صفحه كې ذكرشوي.

## د ميراث دعوه د نورو عامو دعوو په شان ده

د شرح مجلې په (١۶۶٠ماده) كې مسئله ذكر ده چې نه اورېدل كېږي دعوې د دين، وديعة، ملک عقار او ميراث ورسته له پرېښودلو د (١٥)، (٣٠)، (٣٣) او يا (٣۶) كلونو چې راجح قول د (٣۶) كلونو دى نو مسلمانانو ورونو مرور د زمان په ميراث كې په شان د نورو دعواوو دى نو كه څوک د ميراث دعوا كوي نو په داخل د (٣۶) كلونو كې يې د وكړي او كه چا دعوا د ميراث ونه كړه بې له شرعي اعذارو څخه پس له (٣۶) كلونو څخه نو بيا نه اورېدل كېږي چې هغه عذرونه دادي: كه مدعي غائب وو، صبي وو او يا مجنون وو او دې دوى لره ولي نه وو او يا مدعي عليه جائر ظالم قومندان يا د حكومت د قدرت واله سړى وو نو د دغو عذرونو په وجه بيا مدعي پس له مرور زمان څخه هم دعوا كولاى شي. په د ې خبره كې د فقهاوو اختلاف دى چې كومه دعوه چې په داخل د (٣۶) كلونو كې بې له شرعي عذرونو څخه

مدعي نه وي کړې نو قاضيان به يې دعوه نه اوري فتوی په همدې خبره باندې ده خو يوه ډله فقها وايي دا منع ( نهيې ) سلطاني ده يعني که سلطان يا باد شاه قاضيان ځنې منعه کړي نو بيا نه او رېدل کېږي ځکه سلطان لره ولايت عامه دی او که چېرې سلطان قاضيانو ته امر وکړي چې وروسته له شپږ دېرشو کلونو يې هم واوری نو بيا اورېدل کېږي بله ډله فقها وايي چې دامنعه د فقهاوو ده په دې کې سلطان لره مداخله نشته يعني چې مدعي په دغه موده کې دعوه نه وي کړې نه اورېدل کېږي د همېشه لپاره دغه خبره علامه شامي صاحب په ردالمحتار ( ۳۸۲ ص ، ۴ج ) چاپ مطبعه حبيبيه کې ذکر کړې ده او حواله يې خلاصة الفتاوی او نورو کتابونو ته ورکړېده. ( شرح مجله ، ۵ج ، ۱۶۸ص ).

که څوک د دغه مسئلې تفصيل غواړي بدر الفتاوی دې وګوري چې هغې فتاوی هم د عدم سماع فتوی ورکړېده پس له مرور د زمان د دعوې دا ارث نه صحيح کېږي.

## که دې مړي وارث غائب وي

قدرمنو مسلمانانو که چېرې دې مړي په وارثينو کې څوک غائب وي مسافر وي بيا ډېر وخت وروسته کورته راشي نو مسلمانان ورونه کولای شي تعزيې ( تَسَلِّيَتْ ) ورکولو ته ورتللای شي ، خلاصه فاتحې ته مسلمانان ورتللی شي او رواه ده ، همدارنګه که يو څوک دې مړي له وارثانو څخه نه وي اجنبي خلک وي ( مُعَزِّيْ ) وي چې فاتحې ته دې ورتلونکو خلکو څخه وي ، تعزيت ورکوونکی ورته وايي هم دې فاتحې ( تعزيت ) لپاره ورتللی شي داخبره غلطه ده چې پس له دريو ورځو څخه دې فاتحې ( تعزيت ) لپاره ورتلل ښه نه دي ، داخبره چې څوک غائب وي او جانب دې مُعَزِّيْ وي چې وارث دې مړي دی او که

مُعَزّي دعاته ورتلونکی وي ورته رواده دامسئله په ردالمحتار او درمختار کې ذکر ده ( ۱ج ، ۶۶۵ص ، مکتبه حبیبیه ).

همدارنگه په لیک ( خط ) لیکلو سره هم یو چاته ځوک تسلیت ( تعزیت ) ورکولای شي دې مشکوة شریف په حاشیه کې حدیث شریف دی : حضرت محمد صلی الله علیه وسلم حضرت معاذ بن جبل ته چې زوی یې وفات شوی وو یمن ته په لیک کې تسلیت ورلیږلی وو.

دوهم وار تعزیه هم مکروه ده او دې دریو شپو څخه اخواته هم مکروه تنزیهي ده.

## دې میراث یوه مشکله مسئله

د سراجي کتاب په بعضې چاپونو کې یوه عالم په یوه فارسي بیت کې دې یوې مسئلې پوښتنه کړېده او دې امتحان په رقم سره یې فتوی غوښتې ده.

بیت په داسې ډول دی

یک نفر رفت بسفر بسې ماند ازومال – دو وارث داشت یکي عم و دیگر خال

دې بیت معنی داسې ده : یو نفر په سفر باندې ولاړ ډېر مال ورڅخه پاتې شو او دوه وارثان لري یو یې کاکا ( تره ) او بل یې ماما دی دغه کاکا ( تره ) یې دې دغه مامازوی دی او ماما یې دې تره ( کاکا ) زوی دی دې دې مسئلې تشریح داده : دا مسئله په دوو کونډو کې جوړېږي ، یوې کونډې دې بلې کونډې له زوی سره نکاح وکړه او دغه بلې کونډې دې هغه بلې کونډې له زوی سره نکاح وکړه.




عظیمه کونډه دې خالدې کونډې دې زوی بشیر ښځه شوه نکاح یې ورسره وکړه او خالدې کونډې دې عظیمې کونډې له زوی خالد سره نکاح وکړله یعنې ښځه یې شوه دې عظیمې بل زوی حامد دې خالدې له لور سره چې دې بل مېړه ځخه یې وه او فاطمه نومېده نکاح وکړه چې شبیر ترې پیدا شو اوس شبیر په سفر تللی او خالد دې شبیر تره ( کاکا ) دی ، دې شبیر بیا بشیر ماما دی داخو دلته پرېږدو اوس سعید او فاطمه مادري خور او برور دي ځکه چې دواړه دې خالدې زوی او لور دي نو دې سعید دغه شبیر خوریې دی او سعید دې شبیر ماما شو او ماما یې دې تره ( کاکا ) زوی شو نو په بیت کې خالش پسر عم شو جوړ شو او دغه عمش پسر خال داسې دی : حامد او احمد دې عظیمې زامن دي دې دوه مېړونو ځخه یعنې حامد او احمد مادري ورونه دي نو احمد دې شبیر تره ( کاکا ) دی یعنې مادري دي نو احمد دې شبیر تره شو او دې ماما زوی یې بشیر شو عمش پسر خال.

شرعي حكم يې كه چېرې دغه سړى يعني شبير په سفر تللى وو او مرگ يې يقيني وو نو في الحال يې مال دې سعيد او احمد په مابين كې باالمناصف په نيمايي سره تقسيمېږي او كه چېرې يې مرگ يقيني نه وو نو بيابه (۹۰) كاله انتظار كوي وروسته به باالمناصف تقسيمېږي البته دا مسئله زما د استاذ مولوي عبدالستار قندوسي له خوا حل شوې ده كله يې چې موږته د سراجي كتاب درس راكولو.

## په نظر كېدل (په سترگو كېدل) ثابت دي شته

ابوداوود شريف روايت كړى د عائشې صديقې رضی الله عنها څخه روايت دى : نبي كريم صلی الله علیه وسلم به د غسل او اودس امر كولو هغه چاته چې يو ځوك به يې په سترگو كړي وو او په هغه شي او يا چا به يې دې دغه ابو د تويولو امر كولو ، علامه شامي وايي : علماوو ويلي دي هغه ځوك چې په بد نظرى مشهور وي نو د ځان ، مال او حتى الوسع ساتل ځنې ضروري دي او د والي او حاكم لپاره ضروري ده هغه ځوك چې په سترگو كولو كې مشهور وي د عامو ځايونو له تللو څخه منعه كړي او په كور كې د بند شي ، كه فقير وي نو تنخواه د حكومت وركړي ځكه چې د دې ضرر له جزام نه بد دى او حضرت عمر رضی الله عنه بند كړى وو او نسايي شريف روايت كړى دى چې نبي كريم صلی الله علیه وسلم ويلي دي : كه چېرې يو ځوك تاسې يا ستاسې مال ويني او خوښ يې شي نو بايد چې په بركت سره دعا ورته وكړي داسې تبارك الله احسن الخالقين ، اللهم بارك فيه او امر به يې كولو عائن او بد نظر واله ته په غسل كولو او كه ځوك وپېژندل شي چې شى يې په سترگو كړل او د غسل كولو يا د او داسه د اندامونو د وينځلو غوښتنه ترې وشوه ځكه چې هغه د اوداسه يا غسل اوبه په هغه نظر واله (چې په سترگو شوى) ورواچوي ، نو كه چېرې دغه په ستر گو

کوونکي غسل یا اودس نه کولو نو شریعت مقدس وایي چې په زور دې غسل او یا هم اودس پرې وکړي. (رد المحتار ۵ج ، ۲۵۷ص).

## وضع الجَمَاجِم (په زراعت کې د غوایه یا بل حیوان جمجمه درول)

علامه شامي صاحب روایت کړی دی وایي یوه ښځه راغله او نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته یې وویل : مونږ ځښتنان د کښت او کروندې یو مونږ په دې کښت او کر ونده باندې ډارېږو د بد نظری څخه نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورته وویل : جمجمه په کې ودروی اول به نظر په هغه جمجمه لګېږي.

د مشکوة شریف په (۳۸۸ص) (۷ حاشیه) کې یې حدیث په حواله د شرح السنة روایت کړی دی د حدیث شریف معنی داسې ده : حضرت عثمان رضی الله عنه یو ښایسته کوچنی هلک ولید نو ویې ویل : وَ سِّمُوْ نُونَتَه کیلا تصیبه العین په زنه یعني زنې (ذقن) به یې تور خام خال ورووهی چې بد نظر نه ورته رسېږي یعني تورخام خالونه په زنه باندې وروهی او پوخ خال خو ناروا دی. په همدې حاشیه کې هشام له عروه څخه روایت کوي : کله به چې دعروه یو مال خوښ شو یا به د یو چا باغ ته ورداخل شو نو دغه الفاظ به یې ویل : ماشاء الله لاقوة الابالله الی قوله تر فَعَسَى رَبِّي ان یوتین خیرا من جنتک الآیه

د بد نظری د دفع کولو لپاره خصوصاً چې په چا بد نظر لګېدلی وي (په سترګو شوی وي) نو مفسرین وایي دغه آیت شریف ووایاست او پرې دم یې کړی : وان یکادالذین کفرو لیذلقونک بابصارهم لما سمعوالذکرویقولون انه لمجنون وماهو الاذکراللعلمین.

په مشکوة شریف (۳۹۰ص) کې یو حدیث شریف دی چې له ابي امامة بن سهل بن حنیف څخه روایت شوی ده ویلي دي : عامر ابن ابي ربیعه سهل بن

حنیف ولیدا چې سهل غسل کولو نو دغه عامر وویل : والله مارأیت الحدیث یعني قسم په الله جل جلاله دی ما نه دی لیدلی داسې ښایسته پوستکی دبدن لکه دانن مې چې ولیدا نو سهل ته دې ده بد نظر ورسېدا ( په سترګو ) شو ، ځای پر ځای په ځمکه راولوېد ، نو رسول الله صل الله علیه وسلم ته ځوک ورغلل او ورته ویې ویل : یارسول الله صل الله علیه وسلم څه تداوي او څه چاره ده سهل داسې مریض شو او راولوېد ، والله مایرفع رأسه یعني قسم دی سر نه پورته کوي نو رسول الله صل الله علیه وسلم ورته وویل : په چا مو څه اتهام ، ګومان نه کېږي چې چاپه سترګو کړی ( بد نظر کړی نه وي ) نو دوی ورته وویل :ګومان مودی چې عامر بن ربیعه به په سترګوکړی وي ، بیا رسول الله صل الله علیه وسلم عامر بن ربیعه راوغوښت ، فتغلظ علیه سختې خبرې یې ورته وکړې او ورته ویې ویل : ولې خپل ورور وژنې ، ولې ستاسو هر یو بارک الله نه وایي نو نبي کریم صل الله علیه وسلم ورته وویل : ومینځه اغتسل نو هغه د اوداسه اندامونه او د پرتاګه (پرتوګ) یو څه حصه یې پرې مینځله بیا نبي کریم صل الله علیه وسلم دغه اوبه پرې ورواچولې او الله جل جلاله جوړکړ ، روان شو ، نو مسلمانانو وروڼو اوس دا مسنونه طریقه ده باید چې ښه مال او یا ښه انسان هر شیووینو باید بارک الله ووایو ، او که چېرې د بد نظر واله وپېژندل شي هغه ته ورشو چې هغه خپل د اوداسه او یا د هغه د پرتوګ داخل طرف پرېمینځي او په هغه نظر شوي شي یې ورواچوو ځکه په دغه مینځلو نبي کریم صل الله علیه وسلم امر کړي یو. ( مشکوة شریف ، ۳۸۸ ص ، ۷حاشیه ).

## د دغه عائن (بدنظر کوونکي) د وضؤ طریقه داده

علماوایي چې په یوه غټه قصعه کې دې اوبه راوړي او دغه سړی چې بد نظر لري دې مثال په طور یو ښه ښایسته ځوان یا هلک ماشوم یې په سترګو کړ

نو دغه په سترګو کوونکی به مضمضه وکړي دغه دې خولې اوبه به په همدې لوښي کې ورواچوي بیا به یې رواخلي مخ به پرې پرې مینځي بیا به په چپ لاس اوبه راواخلي ښی لاس به پرې پرېمنځي ، بیابه په ښی لاس اوبه راواخلي او چپ لاس به پرې ومینځي بیابه په چپ لاس اوبه رواخلي د ښي لاس د څنګلې سربه پرې ومینځي بیابه په ښي لاس اوبه راواخلي د چپ لاس د څنګلې سربه پرې ومینځي دغه د لاس او دې څنګلې مابین دې نه مینځي بیابه ښی پښه او بیا چپه پښه او بیابه ښی زنګون او بیا به چپ زنګون بیا دې په مخکیني ترتیب سره د پرتوګ داخلي برخه پرېمینځي په همدغه لوښي کې ، بیابه د شا له طرفه دغه اوبه د هغه ماشوم په سرور واچوي ګرانو مسلمانانو دې دغې طریقې په حکمتونو باندې یوازې الله جل جلاله علم لري دې دې طریقې د حکمتونو د پلټلو څخه عقل عاجز دی او هم یې دې ټولو معلوماتو د اسرارو څخه عقل عاجز دی خو دغه عمل چې په مخکې حدیث شریف کې ذکر شو نبي کریم صل الله علیه وسلم په خپله کړی دی او هغه اوبه یې په سترګو شوي شخص باندې وراچولې دي. (مشکوة شریف ۳۹۰ص ، ۵ حاشیه).

اَلْعَيْنُ حَقٌ نبي کریم صل الله علیه وسلم وایي بدنظري شته او ثابته ده چې په دې اړه ماخپله یوه واقعه په خپلو سترګو لیدلې او هغه داچې یو وخت کې د یو چا څه موضوع وه ، هغه خلکوپه موږ دری ځلورو علماوو پسې ډېر نوی جدید او ښایسته تونس موټر راوستلی وو ، موږ دې لوړ مهرو ( برمهرو ) د کلي مرحوم مولوي صاحب سیدالرحمن روح یې دې خوشحاله وي دې هغه کورته ورغلو ، دهغې په مهمانخانه کې موهغه موضوع خلاصه کړه کله چې راووتلو نو د مرحوم مولوي صاحب څخه مو رخصت راواخیست کله چې موټروان موټر ته پورته شو موټر نه چالانېده ، موټروان چې هرڅه وکړل برقونه ، بټری یې

وکتل ډېر کوښښ یې وکړ آخر مور ورته وویل چې استاذه که په دې کلي کې یوبل مستري او یا پوه موټروان وي ورته ووایه چې موټر وګوري ، موټروان وویل مولوي صاحبانو زما موټر په سترګوشوی دی یوځه دم پرې وکړی مخکې چې راتلو کوز په کلي کې یوچا ورته وکتل زه ووېرېدم چې هسې نه په دې موټر څه وشي خو خیر مور د مسجد خواته روان شوو او ورته ومو ویل استاذه مور ترهغه پورې ځو او په مسجد کې لمونځ کوو ته موټر جوړه وه ده بیا همغه خبره تکرار کړه خو مور مسجد ته روان شوو ، ډېر ولاړو چې موټر راغی او قصه یې وکړه ، چې زما بیخي یقین وو چې زما موټر په سترګو شوی ، بیامې په مرحوم مولوي صاحب مبارک غږ وکړ مولوي صاحب یو موټی خاورې دم کړې او په موټر باندې یې وروشیندلې ، کله چې موټر ته پورته شوم نو څنګه چې مې کلي په کې تاوکړه موټر چالان شو.

## اداب الجماع (هغه ادبونه چې په احادیثو سره ثابت وي)

1. مخکې تسمیه (بسم الله) ویل مستحب دي ، سورة اخلاص تلاوت کول ، تکبیر او تهلیل ویل او دا دعا به وایي اګر که دې اولاد څخه نا امیده هم وي : اللهم اجعلها ذرية طيبه ان كنت قَدّرت ان تخرج من صلبي اللهم جنبني الشيطان وجنب الشيطان مارزقتني. (رواه ابوداوود)
2. دې قِبْلې څخه به انحراف کوي (دې قبلې احترام به کوي) او له قبلې څخه به یې چپوي.
3. مېړه او ښځه دواړه به په یوه جامه کې پټ وي ځکه عتبه بن عبد السلمی روایت کړی : قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا اتى احدكم اهله فليستتر ولايتجرد تجرد العيرين معني کله چې یو ستاسې راتګ وکړي خپلې ښځې ته

په دې مخصوص كارسره نو ځانونه دې پټ كړي داسې معامله دې نه كوي لكه وحشي خره . نيل الاوطار كتاب ( ۶ج ، ۱۹۴ص )

4. څوك چې دوهم ځل جماع كوي نو مستحب دي تر څو استنجا ووهي اودس دې وكړي ځكه چې دا كار نشاط خوشحالي او نظافت دی.

5. ملاعبه به كوي مخكې ضم او مچو كول تقبيل ، او كله چې دې نارينه انزال وشي نو زردې نه ليرې كېږي ځكه چې دې زنانه انزال كله كله وروسته كېږي آيت شريف : يخرج من بين الصلب والترائب. او همدارنگه ډېرې خبرې كول دې جماع په وخت كې مكروه دي. ( فقه الاسلامي وادلته ۴ج ، ۲۶۴۵ص )

## وركول دې ذكر ( دې نارينه دې خاص اندام ) په خوله دې زنانه كې

قدرمنو مسلمانانو مېړه ته له ښځې سره په دُبره يعني دې شا له طرفه دې لوی اودس ماتي په ځای كې جماع حرامه ده ، همدارنگه دې حيض په حالت كې هم ورسره حرامه ده. نو علماوو ويلي دي چې تردې مخكې د دې كارونو څخه ډېر بدتر دغه عمل دی چې مېړه خپل ( خاص اندام ) دې خپلې ښځې په خوله كې وركوي ځكه دغه دې غربيانو كافرانو عمل دی. ( الفقه الاسلامي وادلته ۲۶۴۱ص )

دې واده په اوله شپه مخكې له جماع څخه مستحب دي چې مېړه دې خپلې ښځې تندی ونيسي او دا دعاووايي : اللهم اني اسئلك من خيرها وخيرما جبلتها عليه و اعوذبك من شرها وشر ماجبلتها عليه. ( رواه ابن ماجه ، ابوداوود ) ، ( نيل الاوطار ۶ج ، ۱۸۹ص )

امام شافعي رحمه الله وايي نه دي واجب قضاء الجماع ( اداكول دې جماع ) مگر يو وار په مېړه باندې واجب دي همدغه ظاهر الرواية دې احنافو دی او

امام طحاوي وايي چې پس له هرو څلورو ورځو لازم دي په مېړه باندې ، بعضې علماوايي : په هرو څلورو میاشتو کې یو ځل واجب دي په مېړه او دغه موده دې ایلاء ده داخبرې په قضا کې دي یعني که دې مېړه او ښځې خبره قاضي ته ولاړه شي او کوم چې دیانةً دي بیانو په مېړه باندې لازم دي چې خپله ښځه پاکه وساتي په دې معنی سره چې زر زر به جماع ورسره کوي دې دې حاجت به ورپوره کوي چې ترڅو دا بیا زنا ونه کړي که چېرې دی قادر په جماع باندې وو.
بعضې علما وايي چې اعفاف لازم دی یعني په مېړه باندې چې خپله ښځه پاکه وساتي یعني بناء دی په حال دې دوی دې اشتها دغه خبره واجب قضایي ده او همدا معقوله خبره ده. ( محشي الفقه الاسلامي ۴ج ، ۲۶۴۱ص ، ردالمحتار ۲ج ۴۳۲ص )

## عزل جائز دی

مسلمانانو ضرورت دی او په شریعت کې شرم کول نه دي په کار ، نو دې عزل معنی داده چې مېړه دې دې جماع په وخت کې خپل مخصوص اندام دې خپلې زنانه په مخصوص اندام کې داخل کړي کله چې په دې پوهېږي چې انزال کېږي نو خپل اندام خارج کړي او بېرون انزال وکړي داپه ظاهري فکر سره دې اولاد دې مخنیوي یوه طریقه ده خو حضرت محمد صلی الله علیه وسلم وايي : که چېرې تاسو عزل وکړی او یایې ونه کړی نوکه چېرې الله جل جلاله وغواړي دې عزل په استعمال سره به هم ښځه حامله شي ، فقهه الاسلامي وايي : مېړه عزل کولای شي خو چې دې زنانه ( ښځې ) په اجازه سره وي بیایې حدیث ذکر کړی دی.

مسلمانانو ضروري مسئله واوری : ټولې هغه لارې چې دې اولاد مانع گرزي که دواوې دي او که نورې طریقې دې موقت وخت لپاره جائز دي په دې شرط چې متخصص ډاکتر نظر ورکړي چې زر زر اولاد یامور او یا اولاد ته ضرر دی نو دې موقت وخت لپاره کولای شي چې کومه طریقه استعمال کړي اما دې همېش لپاره دې زنانه لپاره ټولې طریقې استعمالول حرام دي چې دې همېشه لپاره دې اولاد څخه ولوېږي. (ردالمحتار ۲ج ، ۴۱۲ص)

نهر دې فقهې کتاب وایي : ښځه دې اولاد دې ځای یعني رَحِم خوله بندولی شي بې دې مېړه له اجازې څخه او بحر رائق وایي بې دې مېړه له اجازې څخه یې نه شي بندولی ښه تطبیق یې دادی که چېرې مېړه په مسافریو کې وي دې اولاد تربیې ته خلاص نه وي او اهل دې زمانې مفسدوي نو ښځه یې دې رَحِم خوله بندولی شي دې نهر مسئله ده او که اهل دې زمانې مفسد نه وي نو بیایې بې له اجازې څخه نه شي بندولی لکن اهل دې زمانې مفسد دی.

## مسئله غلظ آلة الرجل او کثره طول الالة

په جماع کې دخول دې ذکر دې رجل په هغه اندازه ورته روا دی څومره یې چې ښځه طاقت لري او که چېرې د طاقت څخه زیادة وو ، ذکر ډېر زیات طویل وو نو د دې تر طاقت زیات تکلیفول ورته حرام دي ، که چېرې تر هغه خپله اندازه په طول الآلة او غلظ الآلة کې تجاوز وکړي ښځه مفضاة گرځي یعني د تش اودس ماتي او ډک اودس ماتي لار یې یوه شي زور وکاروي یا مېړه تر طاقت زیات تجاوز وکړي اوښځه مړه شي نو په مېړه باندې پوره دیت لازمېږي. مسلمانانو ضروري مسائل دي باید مسلمانان د دین د مسائلو څخه خبر وي او خبر شي ځکه انسان باید حقوق وپېژني.

په حديث شريف کې راځي بي بي ام سلمې رضی الله عنها له حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وکړه ، یا رسول الله که زنانه په خوب کې نارینه ووینې او جماع صورت وموموي یعني چې احتلام ورته وايي نو حکم يې لکه د نارينه غوندې دی او که څنګه یعني غسل پرې لازمېږي او که نه نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورته وويل : چې آیا تاسو ته خوند او لذت حاصلېږي یعني انزال مو کېږي هغه بي بي ورته وويل : بَلِي ( هُو ) یا رسول الله صلی الله علیه وسلم نو نبي کريم صلی الله علیه وسلم ورته وويل : فلتغتسل یعني غسل کوه.

## وهابيان څوک دي

قدرمنو محمد بن عبدالوهاب النجدي په ( ۱۱۱۱ ) سنه کې زیږېدلی او په ( ۱۲۰۷ ) سنه کې وفات شوی دی په اول کې چې طالب العلم وو په مکه او مدينه منوره کې به يې د علماوو څخه علم زده کولو لکه د محمد بن سليمان کردي شافعي مذهب څخه ، د شيخ محمد حياه سندي حنفي څخه او دغه دوه شيخانو او دده نورو استادانو به خپل فراسته سره په کې د ضلال او گمراهی آثار معلومول او ويل به يې دغو علماوو چې زرده دوی به هم گمراه شي او نور به هم گمراه کړي او پلار يې عبدالوهاب هم يو صالح او نېک عالم وو او هغه به هم په خپل فراست سره دا پېش گويي کوله چې دا به گمراه شي او ډېر ذم به يې په کې کولو ، خلک به يې ورڅخه بېرول او د دغه گمراه ورور شيخ سلېمان ابن عبدالوهاب به هم په ده باندې ډېر ردونه کول او دده دا بدعتونه ، ضلال ( گمراهی ) او بد عقائد به يې ردول او شيخ سلېمان چې د ده ورور د دوی په رد باندې يو ښکلی کتاب ليکلی دی ( الصواعق الالهية فی الرد علی الوهابيه ) او په اول کې يې داسې دعوی کړې کله چې د هغې کسانو په هکله مطالعې وکړې چې د نبوت دعوې يې کړې وې لکه مسيلمة الكذاب اسود عنسي دا دعوه به

يې په زړه کې پټه ساتله که يې قدرت پيدا کړی وی نو خامخا به يې ظاهره کړي وی دی په ( ۱۱۴۳ ) کال کې د نجد په وطن کې ښکاره شو او خپله باطله عقيده يې ښکاره کړله نجد د سعودي د بعضو خاصو ښارونو نوم وو.

## د محمدبن عبدالوهاب د کاميابی عوامل

د سعودي مشرانو لکه محمد بن سعود د هغه وروسته د هغه زوی عبدالعزيز بيا سعود زوی د عبدالعزيز دوی به علما راټول کړل او مناظرې به يې ورسره کولې او ددې ضال او مضل ترخنګ دغه د سعودي اميران ولاړ وو او تقويه کول به يې دېرې بدې عقيدې به يې درلودې چې په دې اړوند کتابونه ليکل شوي دي او د دوی ټول مسائل په کې ليکلي دي : لکه دا به يې ويل چې څوک توسل کوي په حضرت محمد صلی الله عليه وسلم هغه کافر کېږي حتی بعضې خنزيرانو متعصبينو به يې ويل چې دغه لکڼه تر حضرت محمد صلی الله عليه وسلم ښه ده ځکه هغه مړ دی او ماته هېڅ ګټه نه شي رسولی او په دې لکڼه خوبه مارمږ کړم ورونو په دې خبرو سره علماوايي دغه خبره چې هر څوک وکړي کافر کېږي اهل سنت والجماعت څلور مذاهب وسيله روا بولي که څوک غواړي دغه مسائل وپېژني جدا کتابونه پرې ليکل شوي دي.

## وهابيان بې ادبه او بليد خلک دي

ورونو مسلمانانو الله جل جلاله د مورِ او تاسو ته د دوی د عقائدو څخه نجات راکړي دغه فتنه انګېزه خلک بدبختانه چې زمورِ او ستاسو د وطن په مشرقي طرف کې زيات دي ورونو ای کاش چې دوی د دين امامانو او مجتهدينو ته مشرکين نه ويلی مورِ يو وخت د پېښور په شاه منصور مولانا صاحب د قرانکريم ترجمه کوله تقريباً د زرو او يونيم زرو کسانو په شاوخوا کې

طالبان به وو هلته کتابونه خرڅېدل یومشکوة شریف ابښی وو هغه چې مولانا غرغشتو صاحب حاشیې پرې لیکلې نو یو وایي چې وهابي وو چې دغه هم ډېر لوی مشرک وو ، وروڼو تاسې اندازه ولګوی څومره غوره دي داخلک علامه غورغوشتو په حنفي مذهب کې ډېر لوی عالم تېرشوی دی وروڼو د ټولو مذاهبو علماوو یعني زمونږ پخواني علماء د دوی په رد کې کتابونه لیکلي دي الله جل جلاله مو د دوی دې فتنې څخه خلاص کړي یوبل طالب راته قصه کوله چې یو دوه وهابیانو په پېښور کې زمونږ د مذهب له دوه حنفي مذهبه طالبانو سره چې د کندهار وو بحث کولو دوی د امام صاحب په حق کې بې ادبه خبره وکړله نو کندهاري طالبانو چاقو ګان پرې را وایستل خو خیر نورو ترې خلاص کړل بیابه وهابیانو ویل چې د دغه کندهاریانو له مخه دابحثونه مه کوی.

علامه انور شاه کشمیري صاحب په فیض الباري شرح صحیح البخاري کې د دوی رئیس محمدابن عبدالوهاب ته د بلید ( بې عقل ) الفاظ استعمال کړي قدرمنو زما شخصي علمي نظر باید مونږ او تاسو ټول په خپل حنفي مذهب باندې ټول په اتفاق وو او که چېرې دا خلک پیداشي نو په یوه ټولنه او یوه مسجد کې به سخت اختلافونه پیداشي بیاخصوصاً په نن زمانه کې اختلاف یو به یو څه کوي بل به بل څه کوي جنګونه به وي علامه محمد عبدالحی الکنوي په مجموعة الفتاوی کې یوه مسئله ذکر کړېده چې که په ټولنه کې اهل ذمه هنداوان او مسلمانان وي او عید اضحی راشي مسلمانانو غوایان اضحیه کول او عید کول ، هندوان په قهر کېدل نو خیر مسلمانان د نور مالونه حلال کړي د غوایه اضحیې د نه کوي لپاره د دفعې د فساد نو وروڼو فساد راځي په جامعه کې نو په خپل حنفي مذهب باندې ټینګ پاتې شی خصوصاً د بعضې پوهنتونونو محصلین خو مکمل د مذهب خلاف ګرځېدلي

وي دامسئولیت د حکومتونو دی چې د دې اختلاف مخنیوی وکړی د دغه اشاعت واله استاذان تر نظارت لاندې ونیسي چې دا د هرې منطقې د مسئولو خلکو کار دی.

علامه شامي صاحب وايي د مذهب څخه گرځېدل بل مذهب ته داخو څه کوې چې وهابیت د عوامو لپاره نه دی روا فقط او فقط ورونو زما هدف دادی لکه مخکې مسئله چې مې ذکر کړه مختلف نظریات پیداکېدل او سره د داسې لویو بې ادبیو چې د انسانیت د چوکاټ څخه هم وتلې وي پیداکېدل یې د مسلمانانو په ضرر او تاوان دي او د دې اختلافاتو مخنیوی ضرور دی خصوصاً د علماوو ، قدرتونو او حکمتونو لوی مسؤلیت دی ورونو مذاهبو ته سپک الفاظ او یا مجتهدینو ته بې ادبه الفاظ استعمالول به کوم مسلمان برداشت کړی شي ، ورونو که غواړی یو کتاب په نامه د سیف المقلدین علی اعناق المنکرین واخلی چې اکثره په فارسي دی او د پخوانیو علماوو دی علامه عبدالحی لکنوي هم دغه کتاب مطالعه کړی دی او زموږ او د وهابیانو ترمنځ په مسائلو باندې یې پوره بحث کړی دی ورونو امام صاحب په ( ۸۰ هـ ) کې تولد شوی دی او په ( ۱۵۰ هـ ) کې وفات شوی دی چې په خیر القرون کې دی او صحابه کرام یې لیدلي وو همدارنگه امام مالک صاحب چې په مدینه منوره کې په حدیثو کې ډېر لوړ شخصیت وو او کتابونه یې هم زیات وو همدارنگه احمد بن حنبل ته وگوری مسند احمد د حدیثو کتاب ته یې او د امام شافعي صاحب کتابونو ته وگوری د دوی احترام په کار دی او کوو به یې داسې نه لکه زموږ د افغانستان بې ادبه وهابیان.

## حدیث شریف د اسلام به نوم پاتې وي ، حقیقي او عملي اسلام به نه وي

حدیث شریف دی رسول الله صلی الله علیه وسلم وایي داسې وخت به راشي چې همغه وخت دا اوس وخت دی هېڅوک مسؤلیت د الله جل جلاله او پیغمبر صلی الله علیه وسلم په نزد نه احساسوي په حدیث شریف کې راځي : رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : کلکم راع وکلکم مسؤل عن رعیته. مسلمان حرام مال خوري ، مسلمان رشوت خوري ، مسلمان غلا کوي ، مسلمانان غیبت کوي مسلمانان په قسم قسم زنا گانو باندې اخته دي مسلمانان په تجارت کې دروغ وایي ښه او بد مالونه سره گډوي یو مسلمان د بل مسلمان د حق لپاره په ناحقه قسمونه کوي ، په ناحقه غصبونه کوي مسلمانانو د اسلام هر څه پرې ایښي دي دا ولې ؟ ځکه حکومت اسلامي شریعت نه دی نافذه کړی مجازات نشته دي مجرم د رشوت په مقابل کې آزادېږي په ښه کار باندې مکافات نشته د هغه مخکې حدیث یوه بله فقره بیانوم د ابن ماجه حدیث شریف دی د عبدالله بن عمر رضی الله عنه څخه روایت دی : رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي : هرکله چې مسلمانانو د اسلام وعدې ماتې کړې یعني په اسلام باندې یې عمل پرې ښودلو الله جل جلاله به دښمنان (کافران ) ورباندې مسلط کړي او هر هغه څه به ترې واخلي چې د دوی په لاس کې دي فکر وکړی په ټوله اسلامي نړۍ کفار مسلط دي خپل منافع لټوي او ټول مسلمانان په وینو کې لت پت دي داځکه چې مسلمانانو په دین عمل پرې ایښی دی او اسلامي حاکمانو د الله جل جلاله د دین د حدودو نفاذ او حفاظت نه دی کړی او په قرانکریم کې الله جل جلاله د مؤمن صفت داسې بیان کړی دی حَافِظُونَ لِحُدُوداِلله

**یارسول الله، یاشفیع المذنبین، یادافع البلیات الفاظ ویل جائز دي او که نه:**

د اول سوال جواب : مولانا عبدالحی لکنوي په مجموعة الفتاوی ( ۳۳۴ ص ، ۴ ج ) علی هامش خلاصة الفتاوی کې ویلي چې که چېرې صلوة او سلام ورسره ووایي روا دي لکه الصلوة والسلام علیک یارسول الله لکه څرنګه چې له تشهد (التحیات) څخه هم معلومېږي او داسې لکه هندیان مسلمانان یې چې د کښېناستلو او ولاړېدلو په وخت کې وایي : یارسول الله ، یاولی الله روا نه دي ځکه دا آیت شریف دی ( الذین یذکرون الله قیاماوقعودا.

د دوهم سوال جواب : شفیع المذنبین ویل جائز خو څه کوې بلکې ضروري دي په دلیل دې ډېرو احادیثو د اِشْفَعْ تُشَفَّعْ.

د دریم سوال جواب : د همدې کتاب (مجموعة الفتاوی) په (۳۵۷ ص ، ۶ ج ) کې عبدالحی لکنوي صاحب ویلي دي : د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په باره کې دافع البلیات ویل په دې معنی چې په ذریعه دحضرت محمد(ص) بلاګانې دفع کېږي روا او جائز دي او په دې معنی چې حضرت محمد (ص) استقلالاً بلاګانې دفع کوي بیا ناروا او ناجائزدي او په آخر کې لکنوي صاحب وایي د داسې الفاظو چې غیر مشروع معنی هم پکښې وي پرېښودل او نه ویل یې اَوْلی او بهتره خبره ده.

**د ښځې تداوي باید ډاکتره ښځه وکړي**

وینبغي ای یجب اَنْ یَعْلَمَ اِمْرَئَةً تداویها لان نظر الجنس الی الجنس اخف

د درمختار عالم وایي : همدارنګه علامه شامي رحمه الله علیه وایي : واجب ده دا چې ښځه ډاکتره دې مریضې ښځې تداوي وکړي هدایې او خانیې کتابونو

مطلقه خبره کړېده عامه تداوي د عام بدن اما علامه شامي د جوهره کتاب مسئله نقل کړېده چې په هغه کتاب کې تفصیل دی : که چېرې مرض په نور بدن کې وو بې د فرج ( خاص اندام څخه ) جائز دی چې ډاکتر نظر ورته وکړي دې کتلو کوم ځای چې ضرورت وي اما که چېرې مریضي په خاص اندام یعني فرج کې وي نو بیا واجب ده چې ښځه ډاکتره یې تداوي وکړي نارینه ته یې تداوي او جراحي نه ده روا او که چېرې ښځه قابله نه وه او ددغه مریضې لپاره هلاکت وو یا ډېر سخت دردونه وو چې تحمل یې نه شو کولای نو بیایې په فرج او شاوخواکې نارینه ډاکتر هم تداوي او جراحي کولای شي څومره چې ضرورت وي او نور کوم ځایونه چې ضرورت یې نه وي حتی الامکان به یې پټوي او ډاکتر به هم بې له هغه ځای څخه چې د تداوي اړتیاده خپل نظر به کنترولوي ورونو مسلمانانو ، تقوادارو ، جراحانو ډاکترانو ډېر محتاط اوسی شریعت مَا اسْتَطَاعَ ویلي چې څومره مو قدرت وي خپل نظر د غیر ضروري چې ضرورت د کتلو نه وي کنټرولوي داسې مثال ورکوي شریعت وایي : والضروري یتقدر بقدر الضرورة مثال ورکوي یعني که یو څوک په غرونو کې دداسې لوږې سره مخامخ شي چې بل حلال شی نشته ترڅو یې وخوري او دې مرګه پرې بچ شي نو فقط مرداره شته ددغه مردارې فقط دومره اندازه خوړل ورته روادي چې دی له مرګه پرې راو ګرزېږي او د ټولې مردارې خوړل ورته نه دي روا. ( رد المختار ۵ج، ۲۶۲ص ، هدایه ، ۴ج ، ۴۵۷ص ، قاضي خان ۴ج ، ۳۶۸ص ).

## ښځه قابله او مُغَسِّله (هغه ښځه چې مړو ښځو ته غسل ورکوي)

قابله ډاکتره که د زنانه ولادي نسایي لپاره پَرَدې کورته وغوښتل شي نو بې له اجازې د مېړه څخه تللی شي ځکه چې په یقیني توګه د مرګ خطره وي که چېرې موږ او تاسو مخکې مسئلې ته فکر وکړو چې د هلاکت په وخت کې د

زنانه مریضې چې قابله وجود ونه لري او یایې د جراحی توان ونه لري نو ډاکتر کولای شي چې د زنانه مریضې د فرج جراحي وکړي په دې ځای کې نارینه ته جواز وو په دغه مسئله کې د بحررائق او درمختار نظریه یوه ده چې بې له اجازې نه شي تللی مگر صاحب د فتح القدیر وایي : بې له اجازې ښځه ورتللی شي چې راجح خبره همدغه ده بیادرته وایم چې موږ او تاسو باید ضرورت ته وگورو چې صاحب د فتح القدیر او نوازل کتاب همدې ته کتلي دي او د هغه مسئلې دیني لپاره بې له اجازې د زوج ښځه تللی شي چې د مېړه یې نه وي زده او ضروري مسئله وي په الفقه الاسلامي ( ۲۶۵۴ص ) کې وایي : د اجنبي ښځې مخ ته کتل د دیني مسئلې د تعلم لپاره په څو شرطونو سره جائزده معنی که دغه شرطونه موجود وو نو نه دي روا یعني داسې ښځه وه چې دغه مسئله یې زده یا د محرم : پلار ، ورور او یامېړه یې زده او یا د پردي نه هغه خواته هم څه مانع وو نو بیا ددیني زده کړې په وخت کې اجنبي ورته کتلی شي وروښو ټول شرطونه موجود دي ښځې معلمانې ، ډاکترانې شته نارینه او ښځینه مشترک په یوه تعمیر او اطاق کې باقي که تعلیم وي او که تعلم یا هر کار دی په ادارو کې دین مقدس اسلام اجازه نه ورکوي دامسئله په فتاوی علماء بلد الحرام کې د سعودي ټولو شیخانو په پوره دلائلو قرآني او احادیثو ثابته بیان کړېده د قرانکریم تفاسیرو لکه : تفسیر مظهري او تفسیر معارف القران په سورت نور او سورت احزاب کې د حجاب د فرضیت په بحث کې داخبرې ډېرې واضح بیان کړې دي دا خو اسلامي هېوادونه دي او داخو څه غرب ، روس ، امریکه او اورپا نه ده چې دیموکراسي ده دلته خو قرآن دی او په قرآن کې دغه آیت : و ا ذا سئلتمو هن فاسئلوهن من وراء حجاب. حجاب خو فرض دی څنگه مسلمانانو حجاب پرېښوود قرآن یې پرېښوود دغه مسئله خو زما په یاد ده ټولو

راديوگانو وويل چې د حامدکرزي په وخت کې د سرتاسري شورى علماوو په ارگ کې فتوى وركړه چې ښځه او نارينه بايد ټول ادارات جلا او بېل کړاى شي دادې دولت د رئيس جمهور ، کابينې ، سترې محکمې ، سرتاسري شورى او د حج اوقافو د علماوو مسئوليت دى او الله جل جلاله به په ورځ د قيامت د هغه حجاب چې په اسلام کې الله جل جلاله امر پرې کړى پوښتنه کوي. ( هدايه ۴ج ، ۴۶۰ص ).

## د تداوى مختلف احکام په اختلاف د احوالو او اشخاصو

قدرمنو مسلمانانو د تداوى احکام مختلف دي په اختلاف د احوال او اشخاصو سره نو تداوي واجب ده په مريض شخص باندې که چېرې يې ونه کړي نو سبب د مرگ ، تلف کېدلو داندام او يا د ضعف د يو اندام يې کېږي چې دامعلومات ټول د مرضونو په طب کې شته دي چې کوم مرضونه مهلک ، کوم مرضونه سبب د تلف د اندام ( عضوې ) او يا کوم مرضونه سبب د ضعف د يواندام کېږي او يا داسې مرضونه چې د يو شخص څخه بل شخص ته نقل کېږي دا مرضونه په طب کې واضح ښودل شوي دي نو په ذکر شوي حالاتو کې تداوي واجب ده او په بعضې حالاتو کې مندوب مستحب ده چې فقط ضعف د بدن راځي او هغه مخکېني حالتونه نه ورڅخه پېښېږي ، په بعضې حالاتو کې مباح ده چې مخکې دوه حالتونه نه وي ، په بعضې حالاتو کې مکروه ده چې کله په تداوي سره هغه مخکې حالت زياتېږي نور مسلمانانو مخکې بَرِء بِاذن الله په حديث شريف کې ذکر شول يعني دوا مستقله مؤثره مه گڼې بلکې الله جل جلاله پرې شفا ورکوي. که څوک غواړي په دې اړه پوره معلومات پيداکړي نو فقه الاسلامي و غيره کتابونه د وگوري. ( الفقه الاسلامي ، ۷ج ، ۵۲۰۴ص )

## په داغ لګولو باندې تداوي رواده

دې حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی ، د احزاب په جنګ کې ابي بن کعب وویشتل شو په اَکْحَلْ رګ باندې دغه رګ په لاس کې دی چې د حیات یعني ژوند رګ دی او نهر البدن دی ( ویاله ) ورته وایي په دې رګ باندې لګېدلی وو نو بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم داغ پرې ولګولو. ( رواه مسلم ).

نهر البدن رګ چې په شاکې یې نوم ابهر دی په ورانه کې د نساء رګ او په لاس کې د اکحل په نامه دی.

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی : سعد بن معاذ رضی الله عنه په اکحل رګ باندې لګېدلی وو ، نبي کریم صلی الله علیه وسلم دوه وارې داغونه پرې ولګول او د حضرت جابر رضی الله عنه څخه داسې روایت هم شوی دی : نبي کریم صلی الله علیه وسلم یو طبیب ورولېږه او هغه داغونه پرې ولګول.

د عبدالله ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دی : رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : شفا په دریو شیانو کې ده : حجامت یعني کدو لګول یعني هغه څوک چې پرې پوهېږي په خپلو وختونوکې کدو لګول یا په ښکر سره وینه کښل ، په عسلو کې او په الکَیُّ داغ په اور باندې.

## بعضې کورنی چې تړوله کورنی دم کوي

د کچکلې آغاصاحب خېل دې ګذڼ د ناروغی ، یادې عبدالمحی الدین د قریې مرحوم صوفي سیدالله جان چې په خپله ده هم او اوس یې زامن دې زېړې او توري دم کوي په مشکوة شریف ( ۳۸۸ ) صفحه کې راغلي دي : د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی : نبي کریم صلی الله علیه وسلم د ( دمونو ) کولو څخه منعه وکړله ، نو دې عمرو بن حزم کورنی راغله او ورته ویې ویل : یا

رسول الله صلى الله عليه وسلم زمونږ دې کورنی سره يو دم دی چې څوک لړم وچيچي ورباندې کوو يې ، اوس خبر شوو چې تا ورڅخه منعه کړېده نو دوی هغه دم ورته بيان کړ ، رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وويل دادم صحيح دی او شرکي ( د ګناه ) الفاظ نشته په کې دم پرې کوی او مسلمانانو ته نفعه او فايده رسوی دې دم کولو اجازه يې ورکړه په حديث سره ثابته شوه چې هغه دمونه او تعويذونه نبي کريم صلى الله عليه وسلم خيرې کړي او منعه يې ورڅخه کړې چې شرکي او کفري الفاظ به په کې وو.

## واکسين کول د شريعت له نظره

قدرمنو مسلمانانو د مقدمې په شکل سره يوه مسئله درته بيانوم : کله چې د روژې په اړه يو مريض د يو عالم څخه پوښتنه وکړي يا لکه د سترګې متخصص د سترګې د جراحی ورته ووايي چې سترګه يا مخ به نه وينځې يا سجده به نه کوې نو دغه عالم به د شريعت له نظره ورته وايي : که چېرې متخصص ډاکتر حاذق مسلمان وي نو د روژې خوړلو اجازه ورکړي او يا د سترګو متخصص ډاکتر ورته ووايي چې سجده مه کوه يا مخ مه وينځه نو د دغه ډاکتر قول ته شريعت اعتبار ورکوي متوجه شی مسلمانانو ځان پوه کړی چې د يوه مسلمان ډاکتر قول ته اعتبار شته نو دې واکسين په رابطه خو دې ټولو مسلمانانو ډاکترانو اتفاق دی چې وايي : که چېرې دا ونه شي نو د فلج مرض ورته پېښېږي او دا واکسين فقط د فلج مرض د مخنيوي لپاره جوړ شوی دی نو مسلمانانو مخکې مسئلې ته ورشی په کومو حالاتو کې چې تداوي ( دوا ) کړل واجب وو په هغه حالاتو کې راځي او که چېرې يې اولاد ته ورنه کړو هغه په فلج مرض او ياتور زېږي اخته شي نو د الله جل جلاله په نزد به مسئول وو.

## كه په چا كفاره لازمه شوې وي

په فتاوى ودوديه كې داسې ذكر شوي دي : كه په چا د رمضان كفاره لازمه شوې وه نو كه چا د اول دمياشتې څخه روژې نيولې البته دا خبره ضروري ده چې اول د مياشتې به ثابت وي نو كه دواړې مياشتې (۳۰) دېرش دېرش ورځې وي او يا كه يوه (۲۹) او بله دېرش وي او يا دواړه (۲۹) ورځې وي كفاره يې صحيح ده او كه كفاره يې د مابين د مياشتې يعني د اول دمياشتې څخه نه وه نيولې نو بيا به ضرور شپېته روژې نيسي. (طحطاوي).

## د څو مرشدانو سره بيعت كول

رجل من الصوفيه اخذالعهد على رجل ثم اختار الرجل شيخا آخر و اخذالعهد عليه فهل عهد الاول لازم ام الثاني الجواب : لايلزم العهدالاول ولا الثاني ولا اصل لذالک.

معنى: كه يو صوفي مريد يو وار د يوه مُرشدسره بيعت وكړ بياله بل سره اوس اول لازم دى كه دوهم. جواب : نه اول لازم دى نه دوهم ځكه نشته دې خبرې لره اصل دليل يعني لزوم په كې نشته چې دوهم ته څوک لاړه بده خبره ده خلاصه څه پابندي نشته. (فتاوى تنقيح حامديه علامه شامي ۲ج ، ۳۶۹ص)

## د وظيفو په وجه بايد سړى درس پرې نه ږدي

المتعلم اذا ترک الاشتغال باالتعلم و اعتزل عن الناس ليتزهدو و يتعبدكما فى زماننا أُدِّبَ سِرًّا والله اعلم.

معنى : طالب العلم (د علم زده كوونكى) كه درس زده كول پرېږدي او د خلكو څخه گوښه شي چې زهداو عبادت وكړي لكه زمونږ په زمانه كې نو دې شاگرد ته

دې پېټ تأديب او ادب ورکړل شي ځکه ښکاره تأديب ورکول سبب د فتنې گرځي خلاصه علم زده کول ضروري دي ځکه شاه ولی الله صاحب وايي چې بيعت متعارفه مستحب دی او په حديث د مشکوة شريف کې هم دا خبره ثابته ده چې نبي عليه السلام په مجلس د زده کړې کې کښېناست نه په مجلس د ذکرکې. يعني طالب العلم بايد د وظيفو په وجه درس پرې نه ږدي. ( خلاصة الفتاوى ۴ ج ، ۳۲۸ ص)

## بيعت متعارفه

شاه ولی الله صاحب په خپل کتاب القول الجميل کې ويلي دي بيعت متعارفه سنت دی همدارنگه مولانا اشرف علي تهانوي وايي د مستحب څخه زيات ويل نه دي ورته په کار که څوک زيات معلومات غواړي ملتقط کتاب د مولوي عبدالستارالسميزائي بلوچستاني استاد العلمأ (۱۴۵ ص) دې وگوري او که څوک غواړي چې د تصوف او مرشد شرطونه او نور ضروري مسائل وگوري نو تفسير الاحکام القرءان للجصاص د وگوري او يا د دشيخ الحديث مرحوم مولوي صاحب عبدالعلي دېو بندي کتاب بلوغ المرام وگوري.

## په حلقه کې رقص کول

قال القرطبي على ان الغناء « سروز او ساز» وضرب القضيب « نل يا دروی وهل » ورقص حلقه حرام ، باالاجماع عندالامام مالک رحمه و ابي حنيفه رحمه والشافعي رحمه و احمد بن حنبل رحمه في مواضع من کتابه و سيد الطائفة الشيخ احمد رحمه صرح بحرمة . رقص (حلقه) معنى حرکات موزون اضطراب حرکات غير موزون داټول حرام دي. فتاوى بزازيه ( ۶ ج ، ۳۴۹ ص ) البريقه شرح طريقه محمديه ( ۲ ج ، ۱۳۳ ص )

قال الشيخ ابراهيم الحلبي الحنفي فاعل الرقص « حلقه » اشد من شارب الخمر لان شارب الخمر يعتقد حرمة الخمر فربما يستغفر ويتوب وفاعل الرقص اي حلقه يعتقد عبادة فلا يستغفر بل يتباهي اي يتبختر وير جو من الخلق المنزله والتعظيم. كه څوک ډېرتفصيل غواړي نو د شيخ عبدالعلي دېوبندي صاحب كتاب صلوة الهدايه حاشيه دې وګوري. (حاشيه هدايه ۱ ج ، ۱۵۸ ص ).

خلاصه هرهغه طريقه د ځلورو طريقو څخه چې ذكر ته په حلقه كې رقص يعني منظم حركات كوي او اضطراب كوي يعني غيرمنظم غورځي ډولک او ساز كوي حرام دي پورته ذكرشوي كتابونه دې وكتل شي.

### خطاء في تاريخ وفات علي بزدوي في كتاب الحطة في الذكر الصحاح السته

تاريخ علامة االدنيا علي بزدوي رحمه الله عليه هو علي بن محمد بن عبدالكريم بن موسى البزدوي الامام كبير الجامع بين استات العلوم امام الدنيا فى الفروع والاصول : دغه عالم لره ډېر تصنيفونه دي يوېې مبسوط په (۱۱) جلده كې دى او يو تفسير يې په ( ۱۲۰ ) جلدونو كې و شرح الجامع الكبير و شرح الجامع الصغير و اصول البزدوي په ( ۴۰۰ ) شاوخوا سنه كې تولد شوى او په ( ۴۸۲ ) كې وفات شوى دى او په كتاب الحطة بذكرالصحاح السته كې چې كوم تاريخ بيان شوى دى دا غلط فاحش دى چې په هغه كې يې د وفات تاريخ ( ۸۸۴ ) دى . ( حاشيه جديده په هدايه د شيخ الحديث المرحوم مولوي عبدالعلي دېوبندي ). پورتنى عالم نور تصنيفونه هم لري.

## د فقهي شريفې دبعضو مشهورو مصنيفينو حالات ( د وفات تاريخ )

د رد المحتار مصنف په د مشق ( شام ) کې په ( ۱۱۹۸ ) کې زېږېدلی دی اوپه ( ۱۲۵۲ ) د(۵۴) کلونو په عمر وفات شوی دی او د صاحب د دُرِّ مختار د قبر تر څنګ یې قبر دی او هلته خښ شوی دی د دُرِّ مختار ملاصاحب د شام په د مشق کې د (۶۳) کلونو په عمر په (۱۰۸۸) کې وفات شوی دی او د دمشق ښار په باب الصغير هديره کې خاورو ته وسپارل شو. د تنوير الابصار مصنف په (۹۳۹) کې د فلسطين د غزې په ترانګه کې زيږېدلی دی او د علامه ابن نُجَيمْ د بحر رائق د کتاب د مصنف شاګرد هم دی او په (۱۰۰۴) هجري کې د رجب د مياشتې په آخرکې وفات شوی دی .

دا خبره زده کړی چې پورته ذکر شوي علماء په اوسني رد المحتار کې چې د تنوير الابصار متن دی او درمختار يې شرحه ده او ردالمحتار يې پخوا حاشيه وه خو اوس دامتن او شرحه حاشيه دي او د ردالمحتار مستقل کتاب چې په دا اوس زمانه کې چاپ دی نو په رد المحتارکې دادری کتابونه دي د دری وارو ذکر شوو علماوو.

## د بحر رائق ( شرح کنز الدقائق ) د مصنف د تولد او وفات تاريخ

علامه ابن نُجَيْم په مصر کې لوی فقيه په ( ۹۲۶ ) قمري سنه کې په قاهره کې زيږېدلی دی او په ( ۹۷۰ ) قمري سنه کې د ( ۴۴ ) کالو په عمر کې په قاهره کې وفات شوی دی او ډېر تصنيفونه لري. د نهر فايق شرح کنز الدقائق مصنف د بحر رائق د مصنف ورور دی او له خپل ورور څخه يې هم زده کړې کړي دي او د خپل ورو په شرحه يې هم مناقشات کړي دي او په ( ۱۰۰۵ ) سنه کې د ربيع الاول په مياشت کې وفات شوی دی. د فتح القدير مصنف په ( ۷۸۸ ) سنه کې

په اسکندریه د مصر کې تولد شوی دی هدایه یې په سراج الدین چې په قاري الهدایه مشهور وو ویلې وه او په ( ۸۶۱ ) سنه کې په قاهره کې وفات شوی دی.

## مریض ته باید د بعضو خوراکونو څخه پرهېز ورکړل شي

که د متخصص ډاکتر څخه یو مریض ته د مضرو خوراکونو څخه پرهېز ورکړل شي د دې خبرې ثبوت د دغه حدیث په رڼاکې و لولی أُمِّ مُنْذر بنت قیس الانصاریه وا یي : د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره حضرت علي رضی الله عنه هم موجود وو او زموږ کره خرماوې وې نو نبي عليه الصلوة والسلام خوړلې او علي رضی الله عنه هم خوړلې یعني د خرماوو د همغه یو رقم څخه یې په دې الفاظو منع کړ مَهْ یَا علي أُ كُفُفْ نو بیا دغه مبارکه بي بي وایي چې ما چغندر او د اوربشو ډوډی راوړه نو بیا نبي کریم صلى الله عليه وسلم وویل اې علي اوس دغه وخوره نو هغه اول ضرر ورته رسولو او دغو آخري خوراکو ضرر نه ورته رسولو. ( مشکوة شریف ، ۳۶۶ ص ) رواه احمد و ترمذي و ابن ماجه.

د یوناني دوا د اثبات لپاره حدیث : حضرت سعد رضی الله عنه روایت کړی دی : زه مریض شوم نو نبي کریم صلى الله عليه وسلم زما پوښتنې ته راغی او زما د تیو په مابین ( سینه ) یې لاس کېښود مایې د لاسو یخوالی حس کاوه او ده راته وویل : چې ته اَ رَجُل مَفْؤد یې یعني د زړه مریضي درته رسېدلې ده او بیا یې راته وویل : ته د بني ثقیفو هغه فلاني طبیب ته ورشه هغه دې ( ۷ ) عجوه نومې خرماوې چې اوس هم ډېرې قیمته دي او په یوه بل حدیث کې راځي چې نبي کریم صلى الله عليه وسلم وایي چا چې ( ۷ ) دانې عجوه نومې خرماوې وخوړلې نو سِحَر به پرې تاثیر ونه کړي. یعني هغه طبیب دې ( ۷ ) دانې خرماوې سره دمندکو و ټکوي بیا دې هغه دوا په خوله کې درواچوي کېدی شي چې دغه

نسخه نبي کریم صلی الله علیه وسلم د دغه طبیب څخه اوربدلې وي او نفع یې په خپله لیدلې وي. ( مشکوة شریف ، ۳۶۶ ص ).

## ښکلي معلومات

### ازمطالعه خاص مولوي نقیب الله منیب بدون اخذاز کُتُب غیر

امام احمد بن عیسی الترمذي یعني امام ترمذي صاحب په خپل کتاب ترمذي شریف ( ۲ ج ، ۱۶۶ ص ) او ( ۲ ج ، ۲۱۴ ص ) کې ویلي او دوه حدیثونه چې په مخکې ذکر شوو صفحوکې دي ویلي چې دغه دوه حدیثونه له ما څخه امام بخاري رحمه الله روایت کړي یعني زه استاد د امام بخاري یم چې امام بخاري دې دغه دوه حدیثونو په سند کې له ماڅخه روایت کوي او نور ډېر احادیث امام ترمذي له امام بخاري صاحب څخه روایت کړي دي یعني دواړه یود بل استاد او شاګرد شول خو امام بخاري صاحب یې ډېر استاد دی. ( از افادات خاص مولوي نقیب الله منیب ).

## ښکلي معلومات

په کابلي تفسیر ، سورة کهف د ( ۹۴ ) آیت په تفسیرکې لیکلي دي د آسترالیا په شمال شرق کې یوسمندر دی د دې سمندر په مشرقي یا شمالي طرف کې یو دېوال دی چې اوږد والی یې له زر میله زیات دی ، زر ( ۱۰۰۰ ) پوټه ارتفاع لري او عرض یې په بعضې مقاماتو کې ( ۱۲ ) میله دی چې دغه تحقیقات برطانوي ساینس دان سي ایم بنګ په یوکال کې ترسره کړیدي.

د چین پاچاه شي هوانګ په ( ۲۴۶ هـ ، ق ) صحنه کې یو دېوال جوړ کړی دی چې اوس هم موجود دی اوږدوالی یې ( ۴۰۰۰ ) څلور زره کیلومتره دی ،

ارتفاع يې (۵،۷) متره او په عرض باندې يې شپږ آسونه بغل په بغل يعني څنګ پر څنګ حرکت کولای شي.

محترمو مسلمانانو که څوک د سد ذوالقرنين چې د کهف سورة په (۹۴ او ۹۵) آياتونو کې يې ذکر راغلی دی معلومات غواړي نو تفسير معارف القران د مطالعه کړي او دنړی د تاريخي دېوالونو معلومات به پوره ورته حاصل شي.

## آزر د ابراهيم عليه السلام پلار وو او که کاکا (عَم)

په دې مسئله کې د علما کرامو ډېر زيات اختلاف دی يو له هغه علماوو څخه چې آزر ته د ابراهيم عليه السلام کاکا وايي او وايي چې پلار يې نه دی هغه مفسرعالم د تفسير مظهري دی ، دې قاموس د کتاب مصنف وايي آذر کهاجر داسې دی او دانوم د ابراهيم عليه السلام د کاکا دی او د پلار نوم يې تارخ دی ، او په تاريخ الحنبلي کې راغلي دي ، ابراهيم بن تارخ وهو آزر وفي تفسير الجلالين فی هذه الاية ة وَاِذْقَالَ اِبْرَاهِيْمُ لِاَبِيْه آزر چې په دې ځای کې دغه آزر لقب د تارخ دی هغه عالم چې وايي آزر يې کاکا وو او په آيت شريف کې لِاَبِيْه لفظ راغلی دی او اب خو پلار ته وايي نو دوی وايي چې په عربي محاورو کې د اب لفظ د عم يعني کاکا لپاره ډېر استعمالېږي حتی چې په قران عظيم الشان کې هم لکه قال تعالی وَاِلهَ آبَائکَ اِبْرَاهيم و اسماعيل مع انه عم يعقوب بن اسحاق. د فتاوی خيريه عالم د فتاوی تنقبح حامديه په حاشيه کې وايي ، دامسئله ډېره د فراخې لمنې وړده واسعة الدلائل کثيرة الاقول والله اعلم بحيقيقة الحال. (فتاوی خيريه په حاشيه دې فتاوی تنقبح حامديه ۲ج ، ۳۶۶ص).

## ښکلي معلومات

قديم مسجدجامع چې د خوارزم په وطن کې دی په ډېره زياته اندازه سره پراخه وو چې په ربعه يعني څلورمه برخه ددې مسجد کې (۴۰۰۰) څلور زره ستنې ( اسطوانة ) ولاړې وې چې په ټول مسجد کې شپاړس زره ( ۱۶۰۰۰) ستنې راځي ،کله چې سړی فکر وکړي نو ډېرې زياتې لويې وادانی مخکې زمانو کې جوړې شوې وې چې نور مسجدونه هم په دې ځای کې ذکردي. ( علامه طحطاوي ۲۳۷ص ).

قدرمنو ورونو زه چې کله مطالعه کوم نو ډېر دقيق متوجه کېږم او دقيق متوجه کېدل په کار دي ، يوه ورځ مې د طحطاوي ( ۱۴۱ ) صفحه مطالعه کوله يوه مسئله پکښې راغله هغه دا چې که څوک د اسکندريې ښار په مناره کې چې په مصر کې پخوا تېره شوې او جوړه شوې وه سرته ورختلي وی او لمر يې ليدلی وای نو روژه به نه خوري او کوم کسان چې په اسکندريه کې دي او په هغه باندې لمر لوېدلی وي د روژې ماتول ( خوړل ) ورته روا دي اوس نو فکر وکړی چې څومره لوړې به جوړې شوې وي ځکه دا په ډېر زيات لوړ ځای کې کېدای شي چې پاس لمر وي او لاندې ماښام وي له دې څخه دا مسئله معلومېږي ، که چېرې په طياره لمر وي او طياره په هواکې وي نو هغې ته روژه خوړل نه دي روا او په هغه محاذات د طيارې کې که لاندې ماښام وي لاندې خلکو ته روژه خوړل روادي.

### مهمه مسئله د بسم الله

د خلاصه کيداني مصنف د لمانځه د مکروهاتو په بحث کې ويلي دي ، د هر سورة مخکې بسم الله ويل په هر رکعت کې يعني د سورة فاتحې او آمين

وروسته مکروه ده دا خبره غلطه او ضعیفه ده دې درمختار متن وایي چې په اتفاق د علماوو مکروه نه ده بلکه ویل یې حسن دي ، همدا خبره د رد المحتار مصنف هم تائید کړې ده ، د فتح القدیر مصنف او حلبي چې د فتح القدیرد مصنف شاگرد دی ( ۱ج ، ۳۶۲ص ، مکتبه حبیبیه ) او په مراقي الفلاح شرح نور الایضاح کې وایي راجح خبره داده چې مباح ده ( ۴ص ) طحطاوي. لکن کومه خبره چې د مخکې علماوو ده چې حسن ورته وایي دا ښه خبره ده ځکه وجه یې علامه شامي داسې ویلې ده ، په دې خبره کې اختلاف دی بعضې علما وایي چې بسم الله د هر سورة جز دی کله یې چې ووایي نو له اختلاف څخه به ساتنه راشي او عمل به په احوط راشي ، خلاصه خبره داده چې د خلاصې د کتاب خبره په آخره اندازه ضعیفه ده. بسم الله په بعضې ځایونو کې سنت ده لکه : د اوداسه په اول کې ، ډوډی خوړلو او غیره کې خو په بعضې وختونو کې یې ویل حرام دي : لکه د زنا په وخت کې له خپلې ښځې سره ، د حیض په وخت ، د جماع په وخت ، د مسروق او مغصوب د خوړلو او یا د شرابو څښلو په وخت کې. ( طحطاوي مع الزیادة ).

## تنبیه، تنبیه

حجر الاسود د حجرمعظم مرکوز في جانب الکعبه. ډېر حدیثونه په منقبت دې حجر الاسود کې راغلي دي ، یو حدیث په صحاح کې راغلي دی داسې چې کله حضرت عمر رضی الله عنه راغی حجر اسود یې مچو کړ ، قَبّلَ مچي یې کړه او داسې یې وویل : اې حجر اسود ته نه چاته گټه رسولی شې او نه کومه فایده خو که چېرې مانبي کریم صلی الله علیه وسلم نه وای لېدلی چې ته یې مچي کړې یې نو ته به مې نه وای مچي کړې یعني ما ولیدا چې مچي یې کړه نو زه یې هم مچي کوم ، حاکم چې د حدیثو لوی عالم دی هغه روایت کړی دی : وایي علي

رضی الله عنه ورته وویل : اې امیر المؤمنین داته څه وایې داته څه وایې دغه حجر الاسود هم ضرر رسوي هم فایده کاشکي ته د دغه آیت په تاویل سم پوه وی نو تابه هم داسې ویلی لکه زه چې وایم هغه آیت دادی : وَاِذْ اَخَذَ رَبُّکَ مِنْ بَنِيْ آدَمَ مِنْ ذُ ریته. الایة چې عهد میثاق ورته وایي : ددې آیت مختصره معنی : کله چې الله جل جلاله ذریه یعني اولاده د آدم علیه السلام په خپل انساني صورة سره خو دومره واړه لکه انسان یې د مېږي په شان سره پیدا کړ په ازل کې نو الله جل جلاله ورته وویل : آیا زه ستاسو رب یم ؟ « الست بربکم قالو بلی ، ټولو ورته وویل چې هو ته زموږ رب یې ، نو وروسته چې انسانان پیداکېږي څوک په هغه فطري ایمان سره چې وعده یې کړې وه پاتې کېږي نوی کسبي ایمان راوړي او څوک کافران کېږي هغه کسبي ایمان ماتوي ، الله جل جلاله هغه وعده په یوه ورقه کې ولیکله او په حجر الاسود کې یې داسې تېره داخله کړه لکه یو شی چې څوک وخوري ، د قیامت په ورځ به دغه حجر الاسود راپورته کېږي سترګې ، ژبه او شونډې به یې وي او شاهدي به ورکوي چاچې وفا کړې وي په هغه وعده نو دا حجر الاسود امین الله ده امانت داره په دغه کتاب کې نو حضرت عمر رضی الله عنه وویل : اې ابولحسن ( علي رضی الله عنه ) موږ د خدای جل جلاله په داسې ځمکه نه پرېږ دي چې ته هلته نه وې په هغه ځمکه ، دعا یې ورته وکړه او خبره یې ورسره ومنله دا بیان په اول د هدایې کتاب کې وګوری.

## د حاجت د دعا غوښتل د دوه درودونو په مابین کې مقبوله ده

علامه شامي صاحب او د درمختار عالم د درود شریف په فضایلو او احکامو کې ویلي او د علماوو ډېر اقوال یې نقل کړي دي چې درود شریف الله جل جلاله قبلوي ، نو کله چې دعا کوی لومړی درود شریف ښه ډېر ووایاست او بیا دعا ( سوال ) وکړی ، خپل حاجت د الله جل جلاله څخه وغواړی او په آخر کې بیاهم

درود شریف ووایاست. الله جل جلاله صلوتین دوه درودونه چې یو په اول او بل په آخرکې وویل شي قبلوي ، الله جل جلاله ډېر کریم دی چې هغه د درودونو په مېنځ کې سوالونه هم قبلوي ، لکه څرنګه چې صاحب د قصیدې بردې ، د خپل ځان د علاج لپاره چې نیم بدن یې فلج وو او دهغه عصر ټولې دواګانې یې کړې وې ، فایده یې ورته ونه کړه ، باالآخره په دې قصیده برده کې که یې وګورې په نبي کریم صلی الله علیه وسلم یې درودونه ووېل او الله جل جلاله ته متوجه شو ، د جمعې ورځ وه او د مازدیګر او ماښام مابین وو ، الله جل جلاله یې د دغه قصیدې د درودونو په برکت سره دعا قبوله کړه او داسې خوب غوندې ورباندې ورغلی وا ، چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم سپینې جامې اغوستې وې ، لاس یې پرې راکش کړ او مسح یې کړ ، الله جل جلاله ورته صحت ورکړ ، عجیبه بیان دی ، د دې او داسې نورو قصو د تنبیه الغافلین لپاره دې قطب الارشاد کتاب مطالعه کړی.

## درضاع مسئله

په عالمګیري کې یوه مسئله ذکر ده که چېرې یوې مرضعې ( تی ورکوونکې ) ښځې یوه هلک او یا یوې نجلی ته تی ورکړ نو په دغه هلک یا نجلی ، د دغه رضاعي مور ټول اولادونه که هغه د دغه تي ورکولو څخه مخکې پیداشوي وي او که وروسته حرام دي. ( عالمګیري ، ۱ج ، ۳۴۳ص ، مطبع ماجدیه ).

په فتاوی کاملیه ( ۲۰ص ) کې ذکر شوي دي چې حواله یې درمختار ته ورکړې ده ، د رضاعي تي ورکولو دعوه دوه داسې شاهدان غواړي لکه د نور مال په دعوه کې چې دوه عادلان نارینه ، او یا یو عادل سړی او دوه عادلانې

ښځې د شاهدی لپاره غواړي ، علامه شامي صاحب وايي شهادت د يوه سړي ، يا يوې ښځې نه صحيح کېږي ، نه مخکې له عقد د نکاح څخه او نه وروسته له عقد د نکاح نه ، د مثال په توګه : چا يوه نجلۍ يو هلک ته په نکاح کړه ، وروسته د دغه نجلی مور دعوه کوي چې ما دغه هلک ته تی ورکړی دی ، نو پورتنيو شاهدانو ته ضرورت دی.

## د قرانکريم د آيتونو شمېر څومره دی

استاد قاري برکت الله سليم وايي ( ۶۲۳۶) شپږ زره دوه سوه شپږ دېرش دی ځکه کومې مجموعې د قرانکريمونو د سورتونو چې دي کله چې جمع شي همدومره کېږي ، علامه شمس الحق افغاني په علوم القرءان کتاب کې وايي ( ۶۶۶۶ ) دی چې دا د بي بي عائشې قول دی ، اصل جواب دادی چې علامه ابن کثير په تفسير ابن کثير کې وايي آيتونه د قرانکريم ( ۶۰۰۰ ) دي او علماوو په دې پورته عدد کې اختلاف کړی دی او بعضې اقوال داسې وايي ( ۶۲۰۴ ) ، ( ۶۲۱۴ ) ، ( ۶۲۱۹ ) ، ( ۶۲۲۵ ) ، ( ۶۲۲۶ ) ، ( ۶۲۳۶ ) دا ټول اقوال راغلي دي خلاصه دغه اختلاف په دې معنی نه دی ، چې د قرانکريم کوم آيت يا زيات شوی او يا کم شوی ، کوم چې نازل شوی همغه دی ، د قيامت تر ورځې به نه کم شي او نه زيات خو اصل خبره داده ، اختلاف ځکه دی چې دحضرت محمد صلی الله عليه وسلم په ژوند مبارک کې قرانکريم نه دی ترتيب شوی بلکه وروسته د وفات باسعادت څخه چېرته چې خبره او موضوع پوره شي هلته د آيت علامه ايږدي ، نو په تعداد چې کوم اختلاف دی بعضې علما ځينو نورو ځايونو ته هم دآيت په علامې ( نښې ) قايل دي ، د اوسنيو قرانکريمونو اکثره چې دسورتونو د تعداد مجموعه وکړې همدغه ( ۶۲۳۶ ) راځي ، همدا قول صحيح دی ، علامه طحطاوي په ( ۳۳۷ ) صفحه کې ويلي دي ، ټول آيتونه د قران عظيم الشان (

۶۶۶۶ ) دي ، الف وَعْدٌ ( ۱۰۰۰ ) ، الف وعيد ( ۱۰۰۰ ) ، الف اَمْرٌ ( ۱۰۰۰ ) ، الف نهيى ( ۱۰۰۰ ) ، الف قصص ( ۱۰۰۰ ) ، الف خبر ( ۱۰۰۰ ) ، حلال و حرام ( ۵۰۰ ) ، دعاء وتسبيح ( ۱۰۰ ) ، ناسخ منسوخ ( ۶۶ ) كذا فى الشعبى عن الكشاف وجهې د اختلاف ته متوجه شي.

## د قران کريم نسخې

امام سيوطي رحمه الله وايي : د عثماني مصحف اووه ( ۷ ) نسخې دي او په اوو ( ۷ ) ښارونو کې وې لکه : مدينه منوره ، مکه معظمه ، شام ، يمن ، بحرين ، بصره ، کوفه. ( تفسير اتقان ۱ج ، ۶۰ص )

د مدني عثماني مصحف تاريخ يعني کومه نسخه چې د حضرت عثمان رضى الله عنه سره په مدينه منوره کې وه د حضرت عثمان رضى الله عنه تر ژوند پورې له ده مبارک سره وه او دده مبارک له شهادت څخه وروسته له حضرت علي کرم الله وجهه سره وه د هغې څخه وروسته د صحابي امير معاويه سره وه ، له هغه ځايه اندلس ته منتقل شوه او له هغه ځايه د مراکش پايتخت فارس ته انتقال شوه ، تاريخ ادريسي تذکرة المصاحف بياوروسته په يوه خاص صورت سره مدينې ته ورسېده او په دوهم جنگ جهاني کې فخري پاچاه سره له نورو تبرکاتو قسطنطنيې ته يوړه چې اوس هم هلته موجوده ده.

مکي عثماني مصحف : تر ( ۶۵۷هـ ) پورې په مکه معظمه کې وه محمدابن جبير اندلسي په ( ۵۷۹ ) کال کې په مکه شريفه کې د هغې زيارت کړی دی ، مولانان شبلي وايي : زما د سياحت په وخت کې دغه نسخه په دمشق کې موجوده وه غالباً د دوی سفر په ( ۱۹ ) قرن کې صورت نيولی دی په آخر کې په کشاف المهدي کتاب ( ۱۵۷ص ) کې راغلي دي سلطان عبدالحميد خان چې

په (۱۷۶۸م) کال کې په تخت ناست وو او تقریباً (۳۰) کاله حکومت یې وکړ په هغه زمانه کې د دمشق په جامع مسجد کې ډېر غټ اور ولګېد او په هغه اورکې د انسخه وسوځېده.

مصحف شامي : احمد مقري مشهور مورخ په (۶۷۵هـ) کال کې د هغې زیارت کړی دی دغه نسخه د کوفې ځخه د اندلس د پاچاهانو قبضې ته ورغله وروسته بیا موحدینو پاچاهانو لاس ته راوستله او بیا د بني سرین سلاطین قبضې ته ورغله او په جامع قرطبه کې محفوظه شوه اهل قرطبي بیا سلطان عبدالمؤمن په دستور د عبدالمؤمن ابن شکوال د مراکش پایتخت ته انتقال کړه او دغه انتقال په (۵۵۲ هـ) کال په (۱۱) د شوال باندې صورت نیولی دی او شامي نسخه په (۶۴۵ هـ ، ش) کې په نزد د خلیفه معتضد علی ابن مأمون موجوده وه او په همدغه کال ذکر شوي خلیفه په تلمسان حمله وکړه او هغه مړشو نو په دغه لښکر کشی کې دغه نسخه ورکه شوه او دوهم وار د تلمسان په شاهي کورنی کې پیداشوه د هغه ځایه یوه تاجر واخیسته او فارس ته یې یوړه او تراوسه همدغلته موجوده ده البته داخبره علامه شمس الحق افغاني کړېده چې ډېر مخکې وفات شوی او قبر یې په چهار سده کې دی زه ورغلی یم زیارت مې یې کړی دی چې ډېر زیات تصنیفونه لري.

بصري مصحف : دغه نسخه د مصر د خدیو په کتابخانه کې موجوده ده او سلطان صلاح الدین ایوبي په (۵۷۵هـ،ش) کال کې په دېرش زره اشرفیو واخیسته.

یمني مصحف : په مصر کې د جامع ازهر په کتابخانه کې موجوده ده.

بحریني مصحف : دا مصحف په فرانسه کې په یوه کتابخانه کې موجوده ده.

کوفي مصحف : د قسطنطنيې په کتابخانه کې موجوده ده ددې علاوه حضرت عثمان رضی الله عنه دری نورې نسخې هم لري چې دوهم له دغو څخه د مصر په قاهره کې د حضرت حسين رضی الله عنه په جامع کې دی او دريم له دغو مصاحفو څخه د ډهلي په جامعه مليه کې موجود دی او که چېرې د پاکستان او هند په تقسيم کې نوي ضائع شوی اوس به هم موجوده وي.

څلورم عثماني مصحف په لندن کې د هند د آفس په کتابخانه کې دی او دغه کلمات پرې ليکلي دي : كَتَبه عثمان بن عفان دغه نسخه د مغلو د پاچاهانو سره وه او د اکبر پاچا مهر پرې لګېدلی دی ، په (۱۸۴۵م) کال کې دغه نسخه د مېجر راونس لاس ته ورغله هغه بيا د هند دکمپاني البست کتابخانې ته ورکړه او اوس د هندوستان په آفس کتابخانه کې دی چې (۱۸۱) صفحې ده او هره صفحه يې (۱۶) ليکې يعني خطونه لري.

## ښکلي معلومات

محمود حسن دېو بندي صاحب په خپل تفسير کې چې بيا د افغانستان علماوو پښتو او فارسي ته ترجمه کړی دی او په کابلي تفسير سره مشهور دی د بقرې سورة د (۲۸۱) نمبر آيت په تفسير کې ويلي دي چې دغه اخري آيت دی چې نازل شوی دی ځکه چې دغه په مِنی شريفه کې د حجة الوداع حج په وخت کې نازل شوی دی او دا خبره يې د بقرې سورة په اول کې هم کړې ده ، د سورة مائده (۳) نمبر آيت اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ الايه دا آيت د حجة الوداع په عرفات کې نازل شوی دی په داسې حال کې چې د عرفې ورځ د جمعې د ورځې سره برابره وه او د عرفات ورځ خو د منی شريفې له مراسمو څخه مخکې وي خلاصه چې دغه آيت مخکې نازل شوی او هغه د بقرې سورة (۲۸۱) آيت تر

ټولو آخري نازل شوی دی ، او د اليوم اکملت لکم الآية د دې آيت شريف له نازلېدو څخه ( ۹۱ ) يا ( ۸۱ ) ورځې وروسته نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفات شوی دی. يوې خبرې ته بايد متوجه شو ، چې ( ۲۸۱ ) نمبر آيت يې مکي بللی دی او دمکي او مدني صحيح تعريف داسې دی : مکي هغه سورتونه يا آيتونه دي چې قبل الهجرة نازل شوي وي او مدني هغه آيتونه دي چې بعدالهجرت يعني وروسته له هجرت څخه نازل شوي وي ، نو د يوې خوا يې دغه مکي بللی او د بلې خوا په حجة الوداع کې چې په نهم کال د هجرت دی نازل شوی نو بيا خو داهم مدني دی لکه نور سورة تناقص دی ، يوه توجيه يې کېدی شي چې لغوي مکي يې بللی وي نه په اصطلاح د تفسير کې ځکه حج خو دی په مکه کې.

## لس حيوانات به جنت ته له مؤمن سره داخلېږي

مولانا شيخ اسماعيل قدس سره العالي المتوفي ( ۱۱۳۷ هـ ) سنه کې په تفسير روح البيان کې ويلي دي لس حيوانات به د پسه په صورت د مؤمن سره جنت ته داخلېږي : اول ناقة صالح عليه السلام ، دوهم عجل ابراهيم عليه السلام ، دريم کبش اسماعيل عليه السلام ، څلورم بقره موسی عليه السلام ، پنځم حوت يونس عليه السلام ، شپږم حمار عزير عليه السلام ، اووم نملة سلېمان عليه السلام ، اتم هد هد سلېمان عليه السلام ، نهم کلب اصحاب کهف ، لسم ناقة محمد صلی الله عليه وسلم ( الاشباه والنظائر ۴ج ، ۱۳۱ص )

## مهمه او عجيبه مسئله

که ډاکتر د ختنې په وخت کې د صُبي د ذَکَرْ سر پرې کړي او دهغه له امله مړشي نو نصف ( نيمايي ) ديت پرې لازمېږي او که ورڅخه جوړشي پوره ديت پرې لازمېږي. ( ردالمحتار ۵ج ، بحواله مکتبه حبيبيه ، ۴۴۱ص ).

ايٌ جانٍ لومات المجني عليه فعليه نصف الدية ولو عاش فاالدية : معنى : هغه كوم جنايت كوونكى دى چې مجني عليه يعني جنايت پرې واقع شوى مړشي نو نيم ديت پر جاني لازمېږي او كه دغه مجني عليه ورڅخه مړ نه شو نو پوره ديت پر جاني لازمېږي ، جواب يې په خپله كړى ، هغه ډاكتر چې د صبيانو هلكانو ختنه كوي ، كه چېرې د هلک د پلار په اذن سره ډاكتر ختنه كړ ، يوه نوكه له ډاكتر څخه ( حشفه د صبي د ذكر قطعه شي ) نو كه چېرې دغه هلک ژوندى پاتې شي ډاكتر به پوره ديت وركوي او كه مړ شي نو نيم ديت به وركوي. په لسو شيانو كې د نفس پوره ديت لازمېږي چې يو له هغه څخه مخصوص اندام ( ذكر ) د نارينه دى. كه څوک غواړي د ذكر شوې مسئلې ( دليل ) غواړې د پوره ديت او نيم ديت نو د ردالمحتار ( ۴۴۱ص ) دې وګوري.

## كه يو څوک دې بل چا منكوحه وتښتوي او بيا يې ځان ته په نكاح كړي

قدرمنو كه يو بې دينه انسان ، فاسق او فاجر دې بل مسلمان منكوحه وتښتوي پرې مسلط شي او بيا عقد او نكاح ورباندې وكړي ، دخول ورباندې وكړي ( جماع ورسره وكړي ) نو دغه فاسق او ظالم ته شرعي حكم دادى : سياستاً دې داسې سخت وهل وركړل شي چې له ټولو تعزيراتو اَشَدُ ( سخت ) وي ، دې دغه ښځې مهر به وركوي دغه ښځه به عده تېروي او ښځه دې هغه اول مېړه ده ځكه دغه دوهمه نكاح باطله ده او هغه اوله په خپل ځاى پاتې ده.

په كتاب الحدود والتعزيرات كې يې ويلي دي : كه چا دې داسې چا سره نكاح وكړه چې نكاح يې ورسره حرامه وه ، اګر كه دى په دې باندې پوه وو چې نكاح يې ورسره حرامه ده ، امام صاحب وايي : حد نشته ده لره او صاحبين وايي : حد شته ورلره. ( قاضي خان كتاب ).

او په هدايه کتاب کې ذکر دي : امام صاحب وايي حد نشته ورته خو که په حراموالي يې پوه وو نو عقوبة سزا دې ورکړي. ( کتاب الحدود والتعزيرات ، ۱۲۳ص ).

## ښکلي معلومات

ټول احاديث مبارکه « ۷۵۳۰۰۰ » دي ، « ۷۵۰۰ » صحابه کرامو روايت کړي ( رارسولي دي ) ، « ۱۱۵۰۰ » صحابه کرامو نومونه په کتابونو کې ذکردي ، علامه ابن حجر وايي ټول صحابه « ۱۲۴۰۰۰ » وو ، علامه ابن کثير وايي « ۱۱۴۰۰۰ » وو ( دادرس ما په خپله دې شيخ الحديث مولانا حسن جان صاحب څخه ليکلی دی ) رفع الله درجته فی اعلی عليين.

په مشکوة شريف ( ۱۴۱ ) صفحه کې يو حديث ذکر دی : په جنة البقيع هديره کې اول عثمان ابن مظعون صحابي ښخ شوی دی ، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم په تندي مچو کړی او دې نبي کريم صلی الله عليه وسلم اوښکې مبارکې د عثمان بن مظعون په مخ باندې ورتويې شوې دي ، دې هغه دې قبر تيږه يې په خپلو لاسونو مبارکو ودروله.

کله چې حضرت محمد صلی الله عليه وسلم وفات شو نو ابوبکر صديق رضی الله عنه راغی او حضرت محمد صلی الله عليه وسلم يې مچو کړ ، که چېرې څوک پلار ، استاذ ، يونېک شخصيت او يا شهيد مچو کړي جائزده او ثواب لري په دې نيت چې حضرت محمد صلی الله عليه وسلم دا کار کړی دی. ( طحطاوي ۴۷۲ص ).

### دې ثواب قرباني کول بل چاته دې پاره دې بل ثواب حاصلولو

ايثار احدبعمل ثواب الی تدارک ثواب آخر

علامه شامي رحمه الله علیه ویلي دي : که یو سړی په صف کې ولاړ وو خو یو ښه عالم ، تقوای داره څوک راغلل ینبغي ضرور به دغه کس وروسته کېږي او هغه عالم ، مشر یا تقوای داره به مخې صف ته داخلوي هغه ځای به ورکوي نو دلته مسئله داسې ده چې دغه سړي هغه دې اول صف ثواب قرباني کړ او بل چاته یې ورکړ دي دې لپاره چې بل ثواب حاصل کړي چې هغه احترام دې مشر عالم یا تقوا داره دی ، احترام په اسلام کې ډېر لوی ثواب لري نو دا ایثار ( قرباني ) کول دي دې یوه عبادت لپاره دې حاصلولو دې بل عبادت چې احترام دی او که مساوي څوک وي بیا دې نه وروسته کېږي او هغه ډېر ثواب دې په خپله حاصل کړي ځکه په اول صف کې اول دی درېدلی. ( ردالمحتار ۱ج ، ۴۲۱ص ).

## دې کافر قول او خبر په معاملاتو کې مقبول دی او اعتبار ور لره شته

و اصله ان خبر الكافر مقبول باالاجماع في المعاملات لافی الديانات و عليه يحمل قول الكنز و يقبل قول الكافر فی الحل والحرمة يعني الحاصلين في ضمن المعاملات لامطلق الحل والحرمة كما توهمه الزيلعي. ( هدایه ، ۴۵۲ص )

## و يقبل قول الفاسق والكافر والعبد في المعاملات

دې مخکې عبارت معنی : خبر دې کافر په معاملاتو کې قبول دی مثال : که یوه مسلمان غوښه واخیسته او قبض یې کړه : که چېرې ده ته یو مسلمان او ښه سړي خبر ورکړ چې دا دې مجوسي دې ذبحه شوي مال غوښه ده نو دغه غوښه به نه دغه مسلمان خوري او نه به یې په بل چا خوري او نه دغه غوښه بېرته هغه بائع ( خرڅوونکي ) ته ور رد کولی شي ځکه چې دې معاملاتو څخه

مسئله ده دغه بیعه صحیح شوې ده او باطله نه ده او دې هغه یوه عادل مسلمان ، ثقه محکم او ښه سړي خبره مقبوله ده په دیاناتو کې لکه یوه قابله چې تنها ووایي کله چې ولد پیداشي نو دا ووایي چې دغه ولد ژوندی وو چې پیداشو او بیا ژر مړ شي نو دې جنازې لمونځ به ورکوي دغه قول دې قابلې ډاکترې قبول دی. (رد المحتار ۲۴۳ص)

## تحلیف الشهود (شاهدانو ته قسم ورکول د قاضي له طرفه)

په لاندې کتابونو کې په دغه مسئله باندې خبرې شوېدي هغه مسئله داده چې که چېرې یو چا په یوه سړي دې حق دعوه وکړه نو بیایې شاهدان راوستل ، بعضې کتابونه وایي لکه مجله چې که مشهود علیه په قاضي ډېر ټینګار وکړ چې دا شاهدان دروغ وایي قسم ورکړه او اهل دې زمانې فاسد وي لکه : دغه نن وخت نو قاضي دې قسم ورکړي یعني تائید دې شهادت دې په قسم سره وکړي په داسې ډول سره چې تاسې قسم وکړی چې موږ دروغ ویونکي نه یو په خپل شهادت کې او قاضي به ورته وایي که مو قسم حلف وکړ شهادت مو قبلوم او که مو ونه کړ نو نه یې قبلوم. فقیه ابي اللیث وایي : نه ښایي قاضي ته چې تر څو یې دې شاهدانو دې شهادت تأکید په یمین (قسم) سره نه وي کړی دا فتوی هغه وخت ده چې شاهدان دوه وي او که دری او څلور یا زیات وو بیایې احتیاج حلف او تزکیې ته نشته دې تحفة القضاة کتاب مصنف وایي همدغه غوره دی لپاره دې فتوی او په همدې باندې فتوی دې فقیه ابي اللیث ، همدارنګه د سمرقند ، بخاری ، عراق او حجاز دې علماوو ده. (تحفة القضاة ۱۰۸ص ، معین القضاة ۴۳ص ، ماده ۲۱۸ په حواله دې بحر رائق ، جامع الفوائد ۲۰۰ او ۲۰۸ ص)

## اکل الخصیتین او الانثیین

علامه شامي صاحب دې پسه شپږ شیان خوړل مکروه تحریمي گر زولي دي لکه : ذَکَر (فرج)، غُده ، وینې مسفوح ، تریخی ، مثانه ، خصیتین او په رد المحتار کې یې هم دا مسئله ذکر کړېده ، فتاوی کاملیه په (۲۶۷ص) کې مکروه تنزیهي ورته ویلي دي او یه الفقه الاسلامي و ادلته کې یې هم مکروه تحریمي ورته ویلي دي (۴ج ، ۳۷۸ص ، مکتبه رشیدیه)

په فتاوی ودود یه بحواله ردالمحتار کې یې هم ورته مکروه تحریمي ویلي دي. (۵ج ، ۲۱۹ص ، مکتبه حبیبیه) بدبع الصنائع (۵ج ، ۶۱ص)

نو راجح او قوي خبره دې مکروه تحریمي ده دې کاملیې خبره ضعیفه ده.

که په دار (سرای) کې باغ وي نو عشر نشته پکې. (ردالمحتار ۲ج ، ۵۳ص)

تصویر شمسي او خیالي تصویر جائزدی لکه په مبایل او غیره برقي وسایلو کې خو په دې شرط چې دې اجنبي ، زنانه او یاکوم بل ناجائز تصویر نه وي . (الفقه الاسلامي ۴ج ، ۲۷۷۸ص)

## په دریو شیان کې بیړه کول په کار دي

نبي کریم صل الله علیه وسلم وایي : په دریو شیانو کې تلوار او بیړه کوی باکره نجلۍ کله یې چې کُف موجود وي نو زر یې په نکاح ورکوی ، قرض دې مسلمان کله چې پیسې درسره پیداشي زر دې مسلمان ورور قرض ورکوی ، جنازه چې حاضره شوه یعني تکفین او تدفین یې ژر کوی کله چې جنازه حاضره شوه زر یې خاورو ته سپاری . (ردالمحتار ۲ج ، ۴۳۲ص)

مسئله : علامه احمد اسماعیل الطحطاوي وايي ځوک چې له لمانځه وروسته تسبېحات وايي نو بايد د ښي لاس په ګوتو سره يې ووايي ځکه صحيح ثابته شوې ده چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم به د ښي لاس په ګوتو سره تسبېحات ويل او د چپ لاس په ګوتو سره يې مه وايئ. ( طحطاوي على مراقي الفلاح ، ۲۵۹ص )

ولو تضررت من كثرة جماعة لم تجز الزيادة على قدر طاقتها

مسلمانانو معذرت غواړم د شريعت کتابونو دېني مسائل ذکر کړي دي د الفاظو د ادبي طرف لحاظ به کوو مسئله داسې ده که زنانه ته له ډېرې جماع ښځه ضرر رسېدلو نو مېړه ته د ښځې تر طاقت زيات کار نه دی روا ، شريعت په دغه مقدار کې چې څومره طاقت لري داښځه نو قاضي ته د ورشي قاضي به د ښځې ظاهري بدن ته وګوري او ورته وبه وايي چې دومره واره جماع ورسره کولی شي يعني د ښځې ظاهري ضعيف والي او چاغ والي ته به وګوي خو که چېرې يې دعوه شوه مېړه ويل چې زيات طاقت لري او ښځې ويل چې نه زيات طاقت نه لرم ضرر دی راته ، خو صحيح خبره داده چې نه قاضي به په ظاهري حال د زنانه فيصله نه کوي بلکې د ښځې څخه به پوښتنه کوي چې ته څومره کرته طاقت لرې نو بيا به قاضي د ښځې قول ته اعتبار ورکوي خو سره له قَسَمه يعني دابه قسم هم کوي او يا به قاضي په توسط د نورو ښځو د دې د طاقت په باره کې معلومات ورکوي.

ښښنه غواړم مسائل دي بيا که چېرې ښځې شکايت وکړ په قضاء کې يا فتوى وغواړي د علماوو څخه د خپل ضرر د وجهې د ډېر اوږد والي يا د ډېر ډبل والي د ذکر د مېړه نو بيا د مسئلې اختيار قاضي ته دی ، له ښځې څخه به

پوښتنه کوي او د ښځې خبره معتبره ده سره له قَسَمه او يا به يې د ښځو په واسطه ، يا به يې قاضي ظاهري بدن ته ګوري ، نو د فقهې کتابونه ليکي : که ښځه وړه وه او د جماع حالت ته نه وه رسېدلې نو مېړه ته به يې نه ورکوي تر څو قابله د جماع شي بيايې د واده وکړي او په دغه مسئله کې هغه هم دا خله ده چې که ډېره کشره وه يا غلظ آلة الرجل او طول آلـه الکثير.

### د وړو ماشومانو سره د رسول الله صلی الله علیه وسلم مينه او محبت

قدرمنو مسلمانانو د مشکوة شريف په (۳۹۷ص) کې حضرت انس رضی الله عنه روايت کړی دی وايي : رسول الله صلی الله علیه وسلم يوه ورځ په غِلمانو هلکانو صبيانو تېر شو کله چې تېرېدلو نو سلام يې ورته واچاوه نو په هغه وړو هلکانو چې په ښه او بد پوهېږي بايد سلام پرې واچوو. متفق عليه

حضرت ابوهريره رضی الله عنه روايت کوي : حضرت محمد صلی الله علیه وسلم حضرت حسن بن علي رضی الله عنه مچوکړ او دده په نزد باندې اقرع ابن حابس وو هغه وويل : زما لس (۱۰) زامن دي او تر اوسه مې يو هم نه دی مچو کړی نو نبي کريم صلی الله علیه وسلم په تعجب سره ورته وکتل يا په غضب سره او ورته ويې ويل : چاچې په چا باندې شفقت ونه کړ نو په هغه باندې به شفقت ونه شي. (متفق عليه)

شفقت يعني د وړو ماشومانو مچو کول ډېر ثواب لري په دې نيت سره چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم هم ماشومان مچو کړي دي. د نبي کريم صلی الله علیه وسلم د وړو ماشومانو سره ډېر زيات محبت وو علامه طحطاوي وايي چې د سراج کتاب مصنف ويلي دي : کله چې ماشوم ډېر ووړ وي د هغه عورت ته کتل جائز دي او بيخي عورت نه لري او نه عورت ورلره شته او د واړه ماشوم (هلک

) ذکَر ته لاس وروړل ، کتل او په غسل کې نه پټول جائز دي علامه طحطاوي وايي چې حواله يې بل کتاب ته ورکړېده وايي : نبي کريم صلى الله عليه وسلم به يُقَبِّلُ ذکَرِي الحسن والحسين يعني : نبي کريم صلى الله عليه وسلم به د حسن او حسين رضى الله عنهما ذکرونه يا زموږ او ستاسو په وردگي لهجه باندې ( چُولُونه ) رانيول کله به يې د يوه او کله د بل ذکر نيولو او ورو ورو به يې کش کولو دوی يعني حسن او حسين رضى الله عنهما به خندل خو گرانو وروڼو دوی ډېر واړه وو يعني لوبې او ساعت تېری به يې ورسره کولو وگوری مسلمانانو وروڼو د حضرت محمد مصطفى صلى الله عليه وسلم بې حده او بې اندازې محبت مهربانۍ او ښو اخلاقو ته چې له ماشومانو سره يې کول. ( طحطاوي ١٩۴ص )

حديث شريف دی : مُرو اولادکم باالصلوة وهم انباء سبع واضربو هم وهم انباء عشر او په درمختار کې راغلي دي : د لمانځه په نه کولو باندې د لس کلن اولاد وهل واجب دي په خو په لاس سره په لرگي باندې نه ، علامه شامي صاحب وايي : بدون له لمانځه څخه به يې په نوروکارو هم په لرگي باندې نه وهي او شامي صاحب حديث نقل کړی دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم مِرْداس يعني معلم او ښوونکي ته ويلي وو ځان وساته زيات له دری واره وهلو څخه او که دې له دری واره زيات ووهلو نو الله جل جلاله به يې قصاص در څخه واخلي. حديث شريف دی : من لم يرحم صغيرنا ولم يُوقر کبيرنا فليس منا. ( ٢٥٨ ص )

## د ماشومانو (صبيانو) وهل

وان وجب على الولي ضرب ابن عشر على تارک الصلوة بيدلابخشبه لحديث مرو اولادکم بالصلوة وهم ابناء سبع واضربوهم عليه وهم ابناء عشر.

قال علامه شامي ولا يجاوزالثلاث وكذالک المعلم ليس له ان يجاوز الثلاث قال عليه الصلوة والسلام لِمِزداس المعلم اياک ان تضرب فوق الثلاث فانک اذا ضربت فوق الثلاث اقتص الله منک.

وروڼو د ماشومانو هلکانو وهل تر درې واره وار کولو زيات چې لپاره د تأديب وي نه دي روا لکه چې په حديث کې ذکر شول چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم مرداس او معلم ته ويلي وو چې تردرى واره زيات مه پرې کوه او که دې له درى واره زيات توب وکړ نو الله جل جلاله به د قيامت په ورځ درڅخه قصاص واخلي نو وروڼو همدغه حديث په نظر کې ونيسى او له الله جل جلاله څخه وويرېږى ظلم مه کوى خصوصاً استاذانو او معلمانو د مخکې حديث څخه وويرېږى. په بل ځاى کې د ښځې د وهلو امر شوى دى مېړه ته فَعِظُوْ هُنّ وَهْجُرُوهُنّ فِى الْمَضَاجِعِ وَاضْرِبُوْ هُن. ترجمه : کومه ښځه والّتي تخافون هغه ښځه چې تاسې وېرېږى د دوى د سرکشى څخه چې د خاوند څخه نشوز او سرکشي کوي الله جل جلاله وايي : اول نصيحت ورته وکړى که په نصيحت سره مشکل حل نه شو نو په ځاى کې ورسره بېلتون وکړى که په دې سره هم سمې لارې ته رانغله نو ويې وهئ خو ضرب غير مبرح په داسې شي نه چې پرې عيبي شي او يايې څه اثر په وجود باندې ښکاره شي.

فائده : يخاصم ضارب الحيوان لا بوجهه لا بوجهه الابوجهه ولايخفى على المتدرب المتدبر والمتتبع المتبحر ان فى هذا ايماء الى ماورد فى الحديث الشريف تضرب الدابة على النفار ولاتضرب على العثار وعلى هذا فاالضمير في قوله او لاً لا بوجهه عائد الى الضرب الذي دل عليه لفظ ضارب فهو من قبيل اعدلو اهواقرب للتقوى اى العدل فمعناه حينئذ يخاصم ضارب الحيوان اى يُنْهى عن ضربه حال كون ضربه لاعلى وجهه الذي اباح الشارع بان

ضرب الدابة على العثار مثلا لان العثار من سوء امساک الراکب اللجام لامن الدابه فینهی في هذه الحالة ضارب الحیوان عن ضربه و قوله ثانیا لا بوجهه ای لا یخاصم ضارب الحیوان اذا کان ضربه على وجه الضرب الذي اباحه الشارع بان کان ضربه على النفار مثلا لان النفار من سوء خلق الدابة فتؤدب على ذالک فاالضمیر في قوله ثانیا لا بوجهه عائد الى الضرب المدلول علیه بضارب ایضا وقد اشبه هذالنفی من النفی ماوقع فی الکافیه من الاستثناء حیث قال فیطابق فیهما ماقصد الااذا کان جنساالاان یقصدالانواع وقوله الابوجهه الضمیر فیه عائد الى الحیوان والمراد به حینئذ العضو وهو استثناء من النفی الثانی الذي دل مفهومه على عدم مخاصمة ضارب الحیوان حیث ضربه مثلاعلى النفار الذی اباحه الشارع ای لا تجوز مخاصمة فی هذه الحاله ای لاینهي عن ذالک الا اذا ضربه على وجهه ای عضوه فانه ینهی عن ذالک لنهی الشارع عن الضرب على الوجه ولعل هذا هوالوجه الذي قصده صاحب البزاز یه من عبارته التی اغرب فیها وَلِکُلٍّ وِجْهَةٌ هُوَمُوَلِّیهَا الخ که څوک غواړي چې سخت ترکیبونه وګوري نو د علامه شامي صاحب په مجموع الرسائل کې یې د وګوري دا ترکیب لپاره د طالب العلمانو ولیکل شو. ( فتاوی تنقیح حامدیه على شامي ، ۲ج ، ۳۶۰ص )

## د اولاد وهل د ادب په لحاظ

د مشکوة شریف په ( ۱۸ص ) کې د حضرت مُعاذ رضی الله عنه څخه روایت دی دغه صحابي مبارک وایي : ماته رسول الله صلی الله علیه وسلم وصیت وکړ یعني امر یې راته وکړ په لسو خبرو باندې چې له بعضو شیانو څخه یې منعه کړم تفصیل یې په دغه حدیث شریف کې ذکر دی : له هغه لسو خبرو څخه یې اتمه ، نهمه ، لسمه خبره داسې راته وکړه و اَنْفِقْ على عیالک من طَوْلِک ولا ترفع

عنهم عصاک ادبا و اَ خِفهُمْ فِی الله معنی په خپل اولاد باندې مصرف کوه نفقه کوه هغه ښه مال چې څومره د قدرت وي او لکښه مه ځنې پورته کوه وهه یې د ادب په نیت نه د تعذیب په نیت یعني کله چې بې ادبه کار ځنې صادرشو او مستحق د تعذیب وگرځېدل بیا نرمي ( مسامحه ) مه ورسره کوی او د الله جل جلاله د مخالفت څخه یې ووېروی یعني د همسایه حقوق ، تعلیم او نصیحت ورته وکړی ، ښې لارې ورته وښیئ او له بدو کارونو څخه یې منعه کړی وروښو بیادرته وایم مخکې مادرته د علامه شامي صاحب حدیث ذکر کړی دی هغه داسې وو چې حضرت محمدصلی الله علیه وسلم مرداس صحابي یعني استاذ د ماشومانو ته ویلي وو چې اې مرداس خبر دار چې ماشومان له درې وارو څخه زیات ونه وهې که دې زیات ووهل نو الله جل جلاله به په ورځ د قیامت قصاص در څخه اخلي. خلاصه قدرمنو علماوو طالبانو استاذانو ذکر شوي حدیث ته په پام سره د ادب لپاره په وهلو نبي کریم صلی الله علیه وسلم امر کړی دی یعني کله چې بې ادبي ترې ظاهره شي وروسته د اولاد یا شاگرد وهل د هغه مخکې حدیث په چوکاټ کې روا دي او ظلم نه دی روا ظلم ته نبي کریم صلی الله علیه وسلم صراحتاً وفرمایل : چې تر درې واره زیات به الله جل جلاله قصاص در څخه اخلي وروښو شامي صاحب فقیه دی او فقهاوو ټول احادیث مطالعه کړي دي وروسته یې بیا مسئلې لیکلي دي نو حکم په شامي کې ذکر شوی دی ، خصوصاً په بعضې مکاتبو کې بعضې استاذان داسې وهل کوي چې د انسانیت څخه بېخي حیوانیت ته ووزي او خارج شي وروښو چې اسلام او احادیث مطالعه کړی په حیواناتو باندې هم ظلم ناروا دی وار خو د انسان شو ، په زیاتو وهلو سره د ماشومانو له درس څخه زړه توربږي قطعاً بیادرس نه وایي باید له نصیحت څخه زیات کار واخیستل شي زه شخصاً نظر په مسئله د شامي صاحب او کوم

حدیث یې چې ذکر کړی دی د زیاتو وهلو کلک مخالف یم او ترهغه حد زیات وهل چې د شامي په حدیث کې ذکر شول د خدای جل جلاله او د رسول مخالفت دی ورونو مور او تاسو مسلمانان یو انسانان یو بیا چې تعلیم یافته وي هغه څه به کوو چې د پیغمبري اسلامي او دیني چوکاټ څخه خارج نه وي ظلم او وهل په ماشومانو مه کوی خصوصاً په معارف کې خووهل قطعاً منعه دي.

## که پلار زوی د ادب په نیت وواهه

که استاذ یا معلم شاګرد وواهه او وصي یتیم وواهه ، مېړه ښځه د ادب او تأدیب په نیت ووهله ، که معلم شاګرد د پلار په اجازه وهلی وي نو په پلار باندې دیت او کفاره داوړه لازمېږي په مؤدب کفاره شته په مېړه کفاره او دیت دواړه لازمېږي که چېرې دغه ذکر شوي کسان مړه شوي وي. ( فتاوی الحدود والتعزیرات ۳۸۱ص )

د ذکر شوې فتاوی په ( ۳۸۱ص ) کې ذکر شوي دي که چېرې معلم یا استاذ شاګرد وواهه خو د پلاریې اجازه وه او په هغه اندازه یې وواهه کومه اندازه چې مروجه وه د پاره د تعلیم نو په دې صورت کې په هغه باندې تاوان نه لازمېږي مګر ورونو تر درې واره زیات وهل نه دي روا ځکه مخکې مې حدیث ذکر کړلو چې علامه شامي صاحب ذکر کړې دي نبي کریم صلی الله علیه وسلم مِرداس صحابي معلم ته وویل چې که تر درې واره زیات پرې وکړې الله جل جلاله به د قیامت په ورځ قصاص درڅخه واخلي ډېر استاذان ، پلاران ، مشران ورونه خو ببخي داسې وهل کوي چې د اسلامیت او انسانیت څخه خو ببخي وتلي وي حتی حیوانیت ته داخل شوي وي استاذانو پورته حدیث په نظر کې ونیسی ،

که استاذ شاګرد له درې واره زیات ووهلو یایې له مروج وهلو څخه زیات ووهلو هرڅه چې پېښ شي تاوان یې په استاد اومعلم لازمېږي.

که چېرې پلار خپل زوی له معمولي وهلو څخه زیات ووهلو لپاره د تأدیب نو په پلار یې هم دیت او هم کفاره لازمېږي.

قدرمنو مسلمانانو د هر شي لپاره الله جل جلاله او د هغه رسول صلی الله علیه وسلم یو حد او اندازه ټاکلې ده نو موږ او تاسو باید تر هغه حد تجاوز ونه کړو لکه : نبي کریم صلی الله علیه وسلم د هلکانو د تعلیم په وخت تر درې وارو پورې وهل جائز کړي او د هغه څخه زیات یې وعید الفاظ استعمال کړي دي او الله جل جلاله دمېږه لپاره په سورة نساء کې اول د نصیحت امر کړی دی لپاره د ښځې او بیا د هغې څخه وروسته یې د ځای جداکېدو او که په هغې هم اصلاح را نه شي نو بیابه یې وهي خو په داسې اندازه سره چې اثر یې په بدن باندې معلوم نه شي او یایې اندام مات نه شي چې په دې کې ډېره ګیله له پوهانو څخه ده چې سربېره په اسلام پوهنه او تقوی داری د الهي حد څخه تجاوز کوي او په اسلام او تقوی کې اسلام ورڅخه ورک وي او بې اسلامه وي. ( فتاوی الحدود والتعزیرات ۳۸۱ – ۳۸۲ص )

## نابالغ لره روژه نیول غوره دي او که په درس کې زیار ایستل

حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي : خپل اولاد په اووه کلنی باندې په لمانځه کولو سره امر کوی او که په لس کلنی کې یې لمونځ نه کولو نو وهی یې فقها لکه د درمختار مصنف او نور علماء وایي چې روژه هم همداسې ده په صحیح قول سره : شامي صاحب او د درمختار عالم او مصنف وایي اګر که د لس کلنو په لمانځه نه کولو سره وهل واجب دي په لاس سره نه په

لرگي باندې او شامي صاحب په ( ۱ج ، ۲۵۸ص ) ويلي دي : د معلم لپاره د شاگرد وهل تر درې واره زيات يعني له درى واره زيات تجاوز نه دى په كار او كه يې دا كار وكړ الله جل جلاله به د قيامت په ورځ قصاص ورڅخه واخلي او دايې ويلي چې بدون د لمانځه څخه په نورو كارونو كې يې هم بايد په لرگي باندې ونه وهى ځكه په لمانځه نه كولو يې د لس كلن هلک وهل په لاس سره وښودل چې پورته د درمختار غوندې قوي متن خبره رانقل كړل شوه ، خلاصه په اووه كلنى كې بايد هلكانو ته په روژه كولو باندې امر وشي په لس كلنى كې يې كه نه نيسي نو بايد يو څه تهديد شي نو مهمه مسئله كه چېرې ماشومانو ته پس له اووه كلنى يا خصوصاً پس له لس كلنى داسې وويل شي چې روژه مه نيسه او درس ووايه يعني ستالپاره درس په يادول بهتره دي نه روژه نيول دا څنگه دي نو قدرمنو مفتي عزيز الرحمن صاحب په فتاوى دارالعلوم دېوبند( ۲۴۵ص ) پوښتنه او شپږم ټوک كې دا خبره ليكلې ده چې بايد په روژه كې په ماشومانو باندې پس له اووه كلنى او يا لس كلنى په دواړو حالتونو كې يعني له بلوغ نه مخكې بايد درس ويل كم كړل شي او د روژو نيولو ترغيب وركړل شي ځكه خو اكثره ديني مدرسې په روژه كې رخصت وي. ( ردالمحتار كې مخكنى مسئله ذكر ده ۲ج ، ۱۴۷ص باب مايفسد ومالا يفسد).

د شوال شپږ روژې پس له اولې ورځې د عيد پيوسته بهتره دي او كه جدا جدا په ټوله مياشت كې؟ جواب : د درمختار مصنف او د طحطاوي على نور الايضاح كتاب مصنف وايي چې جدا جدا مستحب يعني په ټوله مياشت كې يې په هروخت كې نيول بهتره دي او پيوسته نيول يې هم مكروه نه دي.

## په پیچ کاری او سېروم باندې روژه نه ماتېږي

دا مسئله زیاتو کتابونو ذکر کړې ده چې په پېچکاری باندې روژه نه ماتېږي د غه کتابونه د وکتل شي : بدرالفتاوی ملتقط مولوي صاحب عبدالستار السیمزایي البلوچستاني ، آلات جدیده ، حاشیه مولانا رفیع الله علی الهدایه الفقه الاسلامي وادلته ( ۳ج ، ۱۷۱۲ص ) مگر د فقهې اسلامي عالم وايي ، که چېرې د مریض ډېر ضرورت نه وي نو دا بهتره خبره ده چې وروسته له ماښام څخه يې د وکړي ، د فقهاوو قاعده ده هرهغه شی چې د مساماتو یعني وړو وړو سوریو له لارې بدن ته داخل شي روژه نه پرې ماتېږي او کوم شیان چې د منا فذو یعني لویو سوریو له لارې بدن ته داخل شي نو روژه پرې ماتېږي دا مخکې د فقهې اسلامي د عالم ښه نظر دی خو د ډاکتر داشد ضرورت معلومول په ډاکتر پورې اړه لري. ( فتاوی دار العلوم دېوبند ۶ج ، ۲۸۳ص )

## فضیلة لیلة نصف شعبان

وعن ابي موسی الاشعري عن رسول الله صلی الله علیه وسلم قال : ان الله لَيَطَّلِعُ فِي لَيْلَةِ النِصْفِ مِنْ شُعْبَان فیغفر لجمیع خلقه الالمشرک ومشاحن. ( رواه ابن ماجه و احمد )

ژباړه : د حضرت ابو موسی اشعري رضی الله عنه څخه روایت دی چې هغه له نبي کریم صلی الله علیه وسلم څخه روایت کړی دی : ده مبارک صلی الله علیه وسلم ویلي : الله جل جلاله تجلی کوي په بنده گانو باندې په نیمايي د شعبان د میاشتې د شپې کې او مغفرت کوي ټولو خلکو ته مگر فقط مشرک ، کافر او کینه گر ته یې نه کوي او په یو بل روایت کې راغلي دي چې هغه چاته یې نه کوي چې هغه ځان

وژلی وي په زېندۍ کولو او يا بله طريقه سره نو علماء کرام فرمايي چې د دغې شپې په برکت سره الله جل جلاله مسلمانانو ته د هغه گناهونو چې حقوق الله ورڅخه فوت شوي وي عفوه کوي. مسلمانانو ورونو هغه ورځې چې زيات برکتونه پکښې نازلېږي او په هغې کې عبادات ډېر زيات اجرونه لري نسبت نورو ورځو ته لکه : د عرفې ورځ ، جمعې ورځ ، ليلة القدر ، عاشوری ورځ ، عيدينوورځ ، عشرذالحجه ، او د رمضان آخري لس ورځې او شپې دي. د حضرت علي رضی الله عنه څخه روايت دی رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي : کله چې د شعبان د مياشتې د نيمايي شپه راشي نو اې مسلمانانو! د شپې ودرېږی لمونځونه او عبادتونه پکښې وکړی او د دغه شپې د ورځې روژه ونيسی الله جل جلاله په دغه شپه باندې د لمر لوېدو وروسته بيا تر سهاره پورې د دنيا آسمان ته په صفات جلاليه وو سره نعوت جماليه رانازلېږي زيات ظهور په دغه تجلی سره يعنې په حقوق الله کې الله جل جلاله عفوه کوي د دنيا آسمان ته په مخکېنی معنی سره رانازلېږي او په دغه شپه باندې تر سهاره پورې وايي آيا څوک مغفرت غوښتونکي شته چې مغفرت ورته وکړم آيا څوک رزق غوښتونکي شته چې رزق ورکړم آيا څوک مريض شته چې جوړ يې کړم ايا فلانی شی غوښتونکی شته تر سهاره پورې به خپل نعمتونه پرې يادوي. ( رواه ابن ماجه ). نو علماؤ ويلي دي کوم لفظ چې تېر شو چې څوک رزق غوښتونکي شته چې رزق ورکړم نو په دغه شپه بايد څو قسمه خواړه تيار کړی نو په دغه ټول کال کې به ان شاء الله رزق پراخه وي ، همدارنگه د عاشوری په شپه.( مشکوة شريف ۱۱۴ص - ۱۱۵ص ).

## په حاجي قارن او متمتع باندې اضحیه او نحر دواړه واجب دي که یو

قدرمنو مسلمانانو ډېره د پام وړ مسئله ده که چېرې حاجي قِران او یا مُتَمَتّعْ وي او غالبا چې دومره توان ولري چې د حج مصارف یې آماده کړي وي نو اضحیه د عید الضحی هم پرې واجبه ده په هر صورت یعني اضحیه بېل او جدا واجب ده او نحر په دغه دوه اقسامو د حج کې جدا واجب دی نو که چېرې حاجي قارن او یا متمتع وو بعضې علماء وایي چې اضحیه او نحر دواړه واجب دي او دغه قول د بدائع الصنائع د مصنف دی او علامه شامي رحمت الله علیه او علامه علي قاري صاحب وایي : همغه یو د قِرَان یا د تمتع حج نحر پرې واجب دی او اضحیه نه ده پرې واجب تخفیفا شریعت آساني پرې کوي او کړې یې ده خو علماء کرامو فتوی په قول دې علامه شامي رحمة الله علیه کړېده په مسافر او حاجي مفرد باندې نشته.

## ډېره زیاته د توجه وړ مسئله

قدرمنو مسلمانانو په ټولو دیني مسائلو کې په احتیاطي مسئلو کې زیات فکر کوی او زموږ او ستاسو حنفي مذهب ولاړ په احتیاط سره دی نو په دغه راروانه مسئله کې ډېر زیات احتیاط کوی مسئله په داسې ډول سره ده مصنف د درمختار وایي : که چېرې یو چا خپله ښځه د جماع لپاره له خوبه را ویښوله او په دغه وخت کې یې په خطایي سره په لور باندې چې مراهقه وه محض لاس ولګېدل او یا ښځې خپل مېړه د جماع لپاره راویښولو نو د دغې ښځې لاس محض په خپل مراهق زوی باندې په خطایي کې ولګېدل نو دغه ښځه په خپل مېړه باندې د ابد لپاره حرامه شوه. په متن کې مسئله مطلق ذکر ده یعني که د شهوت په حالت کې وو او که بې شهوته وي خو علامه شامي

صاحب وايي چې شهوت په کښې شرط دی یعني دغه حالت به داسې وي : که چېرې مېږه خپله ښځه د جماع له پاره راوېښوله او یاښځې خپل مېږه د جماع لپاره راویښولو نو که چېرې د مېږه لاس په لور باندې ولګېږي یا دښځې په زوی باندې ولګېږي او په دغه حالت کې دوی د شهوت په حالت کې وو نو همدا پورته مسئله ذکر شوېده مسلمانانو احتیاط په دې کې دی چې مېږه او ښځه باید هېڅکله مراهق اولاد د خپل ځان سره نیږدې بیده نه کړي او د جماع آداب هم همدا دي چې که هر څومره تیاره وي باید مراهق اولاد په کوټه کې نه وي.( ۳۰۶ص ، ردالمحتار )

## د نوي زیږېدلي ماشوم او یا ماشومې په غوږ کې اذان او اقامت کول

ابي رافع مولی رسول الله صلی الله علیه وسلم روایت کوي : ما حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ولیدلو کله چې بي بي فاطمې رضی الله عنها حسن رضی الله عنه وزیږولو ده مبارک یې په غوږ کې آذان وکړ. ( رواه الترمذي و ابوداوود )

او د همدغې صفحې د ( ۴ ) حاشیې شرح السنه کې روایت شوی : عمر بن عبدالعزیز به د کوچني زیږېدلي ماشوم په ښي غوږ کې آذان کولو او په چپ غوږ کې به یې اقامة کولو او په حاشیه کې محشي وایي : زه وایم په مسند د ابي یعلي موصلي کې روایت شوی دی دې حسین رضی الله عنه څخه مرفوعا نبي کریم صلی الله علیه وسلم ویلي : د چاچې پیداشو ولد یعني مولود او آذان یې ورته وکړ په ښي غوږ کې او اقامة یې ورته وکړ په چپ غوږ کې نو اُم الصبیان به ضرر ورته ونه رسوي داحدیث د سیوطي په جامع الصغیر کې هم شته. ( مشکوة شریف ۳۶۳ص )

د تسهيل المنافع في الطب والحكمة كتاب په ( ۱۸۳ص ) کې ويلي : أُم الصبيان يو مرض دی او د يمن بعضې خلک « اَلْثُومَا » ورته وايي او دا يو نوعه د صرع مرض دی داسې چې لوېږي ولوېږي لکه مِرګِي د دغه کتاب په حاشيه باندې د دذهبي کتاب هم دی المواهب الدنيه للزرقاني ( ۱۱ص ) علامه ابن حجر وايي چې ام الصبيان تابعة الجن ده يعني جني پېری ده.

## ډېر زيات دردوونکی ظلم

سعيد ابن جبير رضی الله عنه د کوفې تابعي دی او د لويو تابعينو څخه دی ده مبارک د عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه ، عبدالله ابن عباس رضی الله عنه ، عبدالله ابن عمر رضی الله عنه ، عبدالله ابن الزبير رضی الله عنه او انس رضی الله عنه څخه روايت کړی دی او دغه صحابه رضی الله عنهم اجمعين يې استادان وو دی مبارک حجاج بن يوسف ظالم په ( ۹۵ هـ ) سنه کې د شعبان په مياشت کې شهيد کړ او د ده مبارک عمر ( ۴۹ ) کاله وو او حجاج ظالم هم د همدې کال په رمضان او يا شوال کې د همدې سعيد په ښېراوو الله جل جلاله مردار کړ چې واقعه يې داسې وه حجاج ورته وويل : د ځان لپاره دې په خپله يوه طريقه غوره کړه په کوم رقم د مړ کړم سعيد ورته وويل : والله په هر رقم چې ته يې غوره کړې په هغه طريقه به دې زه هم د قيامت په ورځ وژنم يعني ته چې هره طريقه غوره کوې ته يې په خپله غوره کړه نو حجاج ورته وويل : ته غواړې چې په دې خبرو سره عفوه درته وکړم نو سعيد ورته وويل : عفوه او ښښنه د الله جل جلاله په لاس کې ده که وغواړې چې عفوه راته وکړې نو خلاص به مې کړې ، عفوه ستا په لاس کې نه ده نو ده خپلو نفرو ته امر وکړ! بوزی او مړ يې کړی کله يې چې د باندې وويست نو سعيد رضی الله عنه وخندل چا حجاج ته خبر ورکړ چې سعيد رضی الله عنه وخندل نو ببرته يې ور وغوښت او پوښتنه يې ورڅخه وکړه : ولې د وخندل سعيد رضی الله

عنه ورته وويل : د تعجب له کبله چې ستا څومره جرئت دی په الله جل جلاله باندې او الله جل جلاله څومره حلم او نرمي کوي له تاسره ، نوحجاج بيا امر وکړ چې په نطع يې ووژني نطع هغه چرمي فرش دی چې د هغه کس لاندې اچول کېږي چې اعدامېږي نو دی مبارک يې په ځمکه باندې په هغه نطع څملولو حجاج ورته وويل : مړ يې کړی ، سعيد رضی الله عنه دغه مبارک آيت تلاوت کړ وَجَّهْتُ وَجْهِي للذي فطرالسموات والارض حنيفا و ما انامن المشركين حجاج وويل : واړوی مخ يې د قبلې څخه نو سعيد رضی الله عنه دغه آيت شريف وويلو فاينما تُوَلُّوفثمّ وجه الله ، نو بيايې امر ورته وکړ چې پړ مخې يې واړوی نو سعيد رضی الله عنه دغه آيت وويلو منهاخلقناكم وفيها نعيدكم ومنهانخرجكم تارةً أُخرى نو سعيد رضی الله عنه يې ذبح کړ او د ذبحه کېدو مخکې يې کلمه د شهادت يعني لااله الاالله واشهدان محمدعبده ورسوله وويله او داسې ښېرا يې ورته وکړه اللهم لاتسلطه على اَحَدٍ بعدي اې الله جل جلاله زما د مرګ څخه وروسته يې د بل چا په مرګ باندې مه مسلطوه . علما وايي ( ۱۵ ) شپې وروسته مردار شو او الله جل جلاله يې په نس او معده کې يو مرض پيداکړ کله چې يو طبيب ورته راغی نو يوه بدبويه ټوټه د غوښې يې په تار وتړله او معدې ته يې ورکوزه کړله او کله يې چې راوايسته نو ويې ويل : دا جوړېدونکی نه دی او نجات نه شي پيداکولای او ده بدبخته حجاج به ويل : مَالِيَ وَلِسَعِيْد څه مې کولو چې سعيد مې وژلو او ويل به يې کله چې زه ويده شم نو سعيد مې تر پښو ونيسي او د عراق په ښارکې مې کش کوي ،سعيد دفن شوی دی او مسلمانان يې زيارت کوي.

د حجاج بن يوسف پېژندنه : د عقيل ثقفي زوی او د طايف وو يومشهور او ظالم امير وو په ( ۴۵ هـ ) سنه کې تولد شوی وو ، د عبدالله ابن

الزبیر رضی الله عنه سره یې جنګ وکړ او کعبه شریفه یې وویشتله ، عبدالملک ابن مروان یې په حرمینو مقرر کړ چې بیایې شل ( ۲۰ ) کاله تقریباً په عراق باندې حکومت وکړ ډېر فصیح او فقیه ( د فقهې ) عالم وو حجاج ( ۱۲۰۰۰۰ ) کسان وژلي وو او عمر بن عبدالعزیز به ویل که چېرې هر اُمت راتګ وکړي په خپل خبیث باندې نو زموږ خبیث به د ظلم له وجهې پرې غالب شي او علما کرامو ویلي دي کله چې حسن بصري رحمة الله علیه ته د حجاج د مرګ خبر ورسېد نو الله جل جلاله ته یې د شکر سجده وکړه. یو وخت د هغې قریبې خلک ورته راغلل چې اې حجاجه دغه آیت چې زموږ په باره کې نازل شوی چې فَأَبَوْ یعني الله جل جلاله فرمایي د دغې قریبې خلکو موسی علیه السلام او خِضْر علیه السلام ته ډوډۍ ورنه کړه نو تر قیامته یې رنګه بده شوه او په آیت شریف کې ذکر دي چې دواړو ډوډۍ ترې وغوښتله نو وریې نه کړه دوی ورته وویل : چې دغه « ب » په « ت » باندې بدله کړه نو بیا یې معنی داسې کېږي چې ډوډۍ یې ورکړه یعني د ده د زیاتو ظلمونو له وجهې د دوی زړه ته دا رسېدلې وه چې دا کار کوي نو ده ورته وویل : داسې کار خوبه مې کړی وای خو داسې آیت دی : انانحن نزلناالذکر و انا له لحافظون . زه که هر څومره ظالم شم خو دا تغیر کولای نشم ځکه الله جل جلاله یې ذمه اخیستې ده.

## استعمال لفظ الفارسي فی الحدیث

### باب التعجیل الی الموقف

قال امام بخاري ابو عبدالله یزاد في هدالباب ایضاهَمْ لفظ فارسي قاله العیني هذا الحدیثُ حدیث مالک عن ابن شهاب ولکنی اریداَنْ اُدْخِلَ فیه غیر معاد.

علامه انور شاه کشمیري په فیض الباري شرح صحیح بخاري کې ویلي دي چې په دغه ذکر شوي حدیث کې لفظ د هَمْ په فتحه د ها او سکون دی میم سره لفظ فارسي دی او دا د امام بخاري په ژبه جاري شوی دی ځکه چې د امام بخاري ژبه فارسي وه او په نورو ځایو کې هم ورڅخه په دغه کتاب کې فارسي الفاظ استعمال شوي دي ، ډېر محدثین یې ښودلي دي چې فارسي ژبه یې زده وه او یا یې خپله ژبه وه او د علامه عیني ترکي ژبه هم زده وه. ( فیض الباري ۳ج ، ۲۴۵ص ) ( بخاري ۱ج ، ۲۲۶ص ، ۵ح )

## د تازانو خوړل حرام دي

تازان چې د پسرلي په آخرو ورځو کې پیداکېږي یوڅه وخت دوام کوي او بیاورک شي نو د جراد ( مولخ ) له تعریف څخه خارج دي د جراد په اقسامو کې نه راځي نو د تازانو خوړل حرام دي . ( احسن الفتاوی ۷ج ، ۴۰۱ص )

## قنفد (شکونړ) خوړل حرام دي

د قُنْفُذْ که صغیر دی ( ژوندی چیژگی ) او که کبیر وي ( شکونړ ) خوړل یې حرام دي او کنیت نوم یې ابو سفیان ، ابوشرک ، ابودلدل دی داقول د حنابله او حنفیه ؤ علماؤ دی یعني په دغه دوه مذهبونو دی چې په لاندې کتابونو کې ذکر ده. ( فقه علی المذاهب الاربعه ۲ج ، ۳ص ) ، ( کفایة المفتي ۹۱۴۱ص ) ، ( جوهرة النیره ۲ج ، ۲۷۹ص ) ، ( حیوات الحیوان ۳ج )

## په حاضرینو باندې د جنازې لمونځ فرض کفایي دی که فرض عین

د تقریرات رافعي مصنف وایي : په سندي کې ذکر دي د جنازې لمونځ فرض کفایي دی داخبره مقیده ده په دې سره چې خلک حاضر نه وي د جنازې په

مجلس کې او چې حاضر وي بیانو په هر یو باندې فرض عین دی داخبره په فتاوی قاضي خان و ظهیرالدین والمستصفی قال السید امام ناصرالدین دغه عالم ویلي دي : که خلک د جنازې لمانځه ته حاضر نه وي نو لمونځ د جنازې فرض کفایي دی او چې کله جنازه مشاهده کړي بیا فرض عین دی په حاضرو باندې دې کې اختلاف نشته اصلاً دغه عالم وایي : کذا رأیته بخط بعض الفضلا ونقله الملاعلی قاري عن فتوی ابی المعالی و هکذا وجدته بها مش المنح. او د تقریرات عالم وایي : ما مطالعه کړي فی مختارالفتاوی ومتانة الروایات و غیرهما من المعتبرات المتعدده نو ما ډېر معتبر کتابونه مطالعه کړي دي او دا خبره د فرض عین مې نه ده لیدلې په حاضرینو نو ته رجوع وکړه دې مسئلې ته ؛ و قوله صلی الله علیه وسلم صلوا علی صاحبکم مع حضوره دلیل علی عدم افتراضها علی کل حاضر الخ لکن الاولی مراجعة الکتب التي نسب لها القول با الافتراض عندالحضور وقد راجعت الفتاوی قاضي خان فلم اجد هذه المسئله فیها. نو د تقریرات عالم د ذکر شوي بیان څخه معلومېږي چې کومو کتابونو ته نسبت د فرضیت د جنازې د لمانځه شوی په حاضرینو باندې باید مراجعه ورته وشي خوله بیان څخه د شیخ عبدالقادر الرافعي معلومېږي چې په حاضرینو باندې هم فرض کفایي دی.

## نفعه اخیستل په مرهونه روانه دي سود دی یعني کومې اوسنی مروجې ګروی چې دي

قدرمنو مسلمانانو د مروجې ګروی څخه ځان وساتی په دې هکله اول درته د یو لوی مفتي عزیز الرحمن مسئله رانقل کوم چې د ( ۶۷۴ ) پوښتنې په جواب کې یې په فتاوی دارالعلوم دیوبند ( ۳ج ، ۷۵ص ) کې لیکلي دي : که مرتهن چې د پیسو خاوند دی راهن ته چې د ځمکې خاوند او مالک دی څه مجراورنه کړي او دغه حاصلات وغیره ځان ته روا بولي نو په داسې سړي پسې

که چېرته امام وي یا امام نه وي خو بعضې وختونه امامت کوي لمونځ پسې مکروه دی شامي دا تحقیق کړی دی چې د ګروی د ځمکې څخه ګټه اخیستل مرتهن ته نه دي روا دا په سود کې داخل دی ورونو چې کله په داسې سړي پسې د جَمْعِې لمونځ مکروه وي نو باید اعراض او ځان ساتنه ورڅخه وشي په دې مسئله ما ډېر زیات کتابونه مطالعه کړي دي خو زما هم همدغه د مفتي عزیزالرحمن صاحب فتوی خوښه ده نور به زه یو څه اندازه تفصیلات بیان کړم په دې بیان کې مولانا عبدالحی لکنوي صاحب مستقله رساله لیکلې ده او د ټولو فقهاوو اقوال یې رانقل کړي دي د ده مبارک د تحقیق خلاصه هم دا راوزي یو دوه د جواز صورتونه یې لیکلي دي چې یو همدا دی چې کله د پیسو څښتن پیسې ترې اخلي نو د ځمکې مالک ته به د حاصلاتو په مقابل کې یو څه پیسې ورپرېږدي یعني هغه شرطونه خلک نه په ځای کوي ، همدغه د نه جواز خبره په الفقه الاسلامي و ادلته کې هم ذکر ده په فتاوی کاملیه ( ۲۴۴ص ) کې د طحطاوي خبره رانقل کړې ده علامه طحطاوي وایي غالب احوال د خلکو دادی چې دوی کله پیسې ورکوي په دغه وخت کې یې مطلب نفعه وي که چېرې دغه نفعه نه وي د سره پیسې نه ورکوي نو دا نیت ډېر د حرمت طرف ته کومک کوي په نفع اخیستو د مرهونې څخه او بعضې فقها دا خبره کوي : که چېرې د راهن چې د ځمکې خاوند دی اجازه وي بیا رواده ورونو دا خبره هم ډېرو فقهاوو رد کړېده په دې الفاظو باندې : وان اجازه الراهن لایجوز لکه چې دا خبره په ذکر شوې صفحه کې لیکل شوې ده.

حکیم الامت مولانا اشرف علي تهانوي په جنتي زېور کتاب کې بیان کړی دی چې په ګرو کورکې اوسېدل هم روا نه دي ځکه دا د ګرو شي څخه یو

ډول استفاده ده او ناروا ده. ليس للمرتهن الانتفاع باالرهن باستخدام ولابسكني. (مرآة المجله ۱ج ، ۳۸۹ص).

د گرو شي څخه گروي دار ته چې مرتهن دی نفعه اخيستل حرام دي : گروي چې په عربي کې ورته رهن وايي په هغه صورت کې چې سړی په سفر کې وي او پوريعني قرض ته يې ضرورت پيښ شي يا په خپل وطن کې وي خو څوک نه پيژني او يا د قرض د ادا کولو اعتبار موجود نه وي يعني د قرض د حفاظت لپاره يوه وسيله ده په دغه صورتونو کې اسلامي شريعت د دې ډول ستونزو د حل لپاره د رهن (گروی) طريقه اختيار کړې ده چې په آيتونو او احاديثو سره ثابته ده او بدون له ذکر شوو صورتونو څخه نور ټول صورتونه حرام او ناروا دي.

د گرو شي څخه گټه اخيستل حرام دي د اسلامي شريعت عمومي قاعده : کل قرض جر نفا فهو ربوا ، هر قرض چې نفعه ولري سود دی او گرو شی هم د قرض او امانت شکل لري چې د قرض خلاصولو د اطمېنان لپاره يوه وسيله ده او بل دا چې که چېرې قرض ادا نه شي دغه گرو شی به خرڅ کړي او د خپل قرض په اندازه به ترې حاصله کړي نو په همدې وجه له مرهونې څخه د مثال په طور سره چې ځمکه وي مرتهن ته چې د پيسو مالک دی گټه اخيستل حرام دي. فی الشامي عن المنح لا يحل له ان ينتفع بشيئ منه بوجه من الوجوه وان اذن له الراهن لانه اذن له فی الربوا الخ ثم قال ثم رأيت فی جواهر الفتاوی اذا کان مشروطا صار قرضا فيه منفعة وهو ربوا او دا سود دی همدارنگه يې په فتاوی دارالعلوم ديو بند کې نقل کړېده (الدر المختار کتاب الرهن ۶ج ، ۴۸۲ص).

په گرو کورکې اوسېدل او د هغه کرایه ورکول یو سودې لین دی ، په همغه حدیث کې داخل دی ، کل قرض جرنفافهو ربوا( فتاوی دېوبند ۲ج ، ۶۴۳ص ) ( اسلامي فقه مراة المجله ۱ج ، ۳۸۹ص ). همدارنګه د بهشتي زېور کتاب د حکیم الامت اشرف علي تهانوي همدارنګه الفقه الاسلامي وادلته کې الدکتور وهبة الزحیلي ( ۶ج ، ۱۳۴ص ) کې دي چې د مرهونې څخه مرتهن ته نفع اخیستل ناروا دي ځکه د علماء الجنة الدائمة للافتاء څخه دا پوښتنه شوې او ناروا یې ګرځولې ده. ( فتاوی الجنة الدائمة ۱۴/ ۱۷۷ص ).

په ننی زمانه کې د ګرو ایښودونکي او ګرو اخیستونکو دواړو په ذهن کې داوي چې ګرو ایښودونکي به ګټه اخلي او په ګروی باندې ګټه اخیستل سراسر سود دی ځکه چې دلته د قرض په بدل کې ګټه په لاس ورځي او هغه خوري دوی داسې نه کوي چې هغه ګټه په قرض کې حساب کړي.

بیع الوفا یوه اجتهادي بیعه ده چې د بخارا او سمرقند علماوو ټاکلې ده ، د نړی علما په دې اړه مختلف نظریات لري د دېوبند علما لیکي چې دا بیعه د بلخ او بخارا علماوو ټاکلې یوه اختلافي مسئله ده چې ځینې یې روا او ځینې یې د سود لپاره یوه لاره بولي د عربي نړی علماوو ویلي دي چې دا د سمرقند علماوو تاکلې ده وروښو خبره واوری د کمو علماوو طرف ته یعني لږ د جواز طرف ته ځي تاسو خپله فکر وکړی نه دي په کار مسلمانانو ته چې دا د سود ګټې وکړي. بیع الوفا هم د رهن په حکم کې ده چې وجه به یې ذکر شي ، ځینې خلک په بیع الوفا هم نه پوهېږي بلکې مستقیماً معامله دګروي وي بیع الوفا چې موږ ورڅخه په ګروی تعبیر کوو اګر چې دا تعبیر غلط دی ځکه ګروي بېل شی ده او بیع الوفا بېل شی ده ، بیع الوفا یا بیع جائزې دې ته وایي چې په عقد کې بائع د ځمکې یا کور وغیره مالک مشتري ته ووایي چې دا ځمکه یا کور ما

په تا خرڅ کړی په دومره پیسو باندې خو چې ما کله بېرته پیسې تاته درکړې ته به زما ځمکه راکوې دواړه به په دې باندې وفاسره کوو بیانو په بیع وفا کې شرط دادی چې څوک یې جائزه بولي چې د عقد په وخت کې به دا د بېرته بدلولو د بدلینو شرط نه ذکر کوي وروسته له عقد څخه د یو بل ته ووایي چې تا پیسې راکړې زه به ځمکه درکوم وروښو دغه لږ ډله علماوو هم چې دا د بیعې صورت جوړ کړی د گروی څخه تېښته کوي ، وروښو چې صراحةً گروي وي دا خو بیخي او ضرور سود دی.

په بیع وفا کې علماء دری ډلې دي اوله ډله وایي چې بیع الوفا په حکم د رهن کې ده نو په رهن یعني مرهونه باندې مرتهن ته فایده اخیستل ناروادي نو بیع الوفا هم ناروا ده. ( فتاوی خیریه جامع الفصولین ۱۶۹ص ، کاملیه مجله اتاسي ۴۱۴ص ) فتاوی خیریه او فتاوی او جواهر الفتاوی په بطلان د بیع الوفاء فتوی ورکړېده.

دوهم قول د علماوو چې بیع الوفا بیع بولي او صحیح یې بولي امام زیلعي وایي دا بیع صحیح ده مفیده ده بعضې احکامو لره چې انتفاع پرې حلاله ده او په دې باندې فتوی ده.

القول الجامع لبعض المحققین : انه العقد لبیع الوفاء فاسد في حق بعض الاحکام صحیح في حق بعض الاحکام و رهن في فعض الاحکام جوز لحاجة الناس الیه بشرط سلامة البدلین قال في البحر وینبغي ان لا یعدل فی الافتاء عن القول الجامع قال في النهر والعمل في دیارنا علی مارجحه الزیلعي. ( ردالمحتار ۷ج ، ۵۸۰ص ) او په اقاله کې یې له نهایه څخه نقل کړی دی او مفتی به یې بللې ده ، د معین القضاة په آخر کې هم ذکر ده.

دریم قول د علماوو :که چېرې لفظ د بیع په عقد کې استعمال شي نو بیا بیع صحیح ده او که نه شو استعمال نو بیا رهن ده ناروا ده. (ردالمحتار)

څلورم قول د علماوو : د بلخ ، خوارزم او ابو علي نسفي فتوی ورکړېده په جواز د بیع الوفا باندې ځکه عرف ورباندې جاري ده. (ردالمحتار)

پنځم قول : چې دغه بیع صحیح ده او نافذه ده ځکه د خلکو حاجت ده او له سود څخه د خلاصون یوه لاره ده یعني په ګروي باندې نفع اخیستل سود ده او دا بیع وفا د ګروي حالت څخه تېښته ده ، قدرمنو مسلمانانو زموږ او تاسو خو صراحةً ګروی دي قدرمنو تکراراً درته وایم چې په هر قول یې څوک روا بولي هغه شرطونه دې جواز نشته او نه یې څوک مراعات کوي.

شپږم قول : د قاضي خان دی که چېرې د بیع لفظ استعمال شي او شرط د فسخ ذکر نه شي وروسته بیا وعده وکړي نو جائز ده . قال الصحیح ان العقد الذي جري بینهما ان کان بلفظ البیع بشرط الوفاء او تلفظا بلفظ البیع الجائز و عندهما هذاالبیع عبارة عن عقد غیر لازم فکذالک وان ذکر البیع من غیر شرط ثم ذکر بوجه المواعدة جاز البیع و یلزمه الوفاء باالوعد لان المواعد قد تکون لازمة فتجعل لازمة لحاجة الناس. (قاضي خان ۲ج ، ۳۵۳ص)

حاصل او مقصد دادی چې بیع الوفاء څو قسمه ده خو نن ورځ مروجه بیع الوفاء روا نه ده ځکه اول لفظ د بیع نه استعمالوي دوهم که لفظ د بیع استعمال هم شي خو بیا هم نیت او قصد د بیعې نه وي بلکې مقصود نفع په قرض وي دریم دلته شرط لګوي د فسخ کولو نو اوس دا بیع بولې دا بیع بشرط راغله او ناروا ده او که یې رهن بولې نو نفع په رهن یعني مرهونې هم ناروا ده نو بیع الوفاء باید په لاندې شرایطو سره وشي.

شروط صحة بيع الوفاء : اول لفظ د بيعې به استعمالوي . دوهم په وخت د عقد کې به الفاظ د فسخ نه لګوي . دريم د اخيستونکي او خرڅوونکي دواړو به قصد د بيعې يعني خريد او فروخت وي او عقد به لازم بولي. څلورم چې کله عقد تام شي بې له شرط څخه وروسته به بيا وعده ورسره کوي چې زه پيسې کله درکړم نو ته به ځمکه راکوې نو دا وعده شوه او په وعده باندې وفا لازمه ده ځکه صاحبين وايي چې شرط په اصل عقد پورې نه ملحق کېږي او شرح مجلې هم دا صحيح بللې ده که چېرې دغه شرطونه مراعات شي نو د قاضي خان په قول باندې به عمل وشي او د ده په باره کې علامه ابن عابدين ذکر کړي دي : ان القاضي خان من اهل التصحيح والتر جبح او بيايې د قاضي خان عبارت نقل کړی دی ورونېو چې خبره راباندې ګډه وډه نه شي بيانو مخکې چې علامه شامي صاحب ناروا بلله هغه نفع په مرهونې باندې وه ولې داچې دلته داسې نظر وايي دا په بيع الوفاء کې خپل نظر وايي دا دوه بېل شيان دي د دغه ډله علماوو په نزد باندې او په ظهيريه کې وايي که چېرې شرط ذکر شي پس له عقد څخه دا په عقد پورې ملحق کېږي په نز د امام ابوحنيفه او موږ مخکې ذکر کړي دي په باب د بيع فاسدې کې ترجېح د قولهماچې شرط مؤخر د عقد په عقد پورې نه ملحق کېږي ( ردالمحتار ۷ج ، ۵۸۳ص )

او همدارنګه د بعضې فقهاوو په نز بيع جائزه په حکم د رهن کې ده نو اجازه د راهن بايد وي په انتفاع د مرهونې مرتهن ته اګر چې نورو علماوو دغه اجازې ته اجازه په سود باندې ويلې ده يعني اعتبار يې نه وو ورکړی ( رهنمائې وثائق)

په فتاوی حقانيه کې يې په باره د بيع الوفاء کې داسې ويلي دي چې په حالت د اضطرار او مجبوری کې د بائع لپاره د متأخرينو په فتوی باندې د عمل

کولو گنجایش نشته لکن بې له یو سخت ضرورته له دې څخه اجتناب او ځان ساتل ضروري دي. ( فتاوی حقانیه ۵ج ، ۱۵۱ص )

قدرمنو مسلمانانو بیایې خبره هغه علماوو ته منسوبه کړه چې جواز او روا والي د بیع الوفاء ته قائل دي ورونو دا د بیع الوفاء حالت شو چې بې له سخت ضرورت څخه یې د نه کوي داهم چې ټول شرطونه یې په ځای وي زما شخصي همغه د مفتي عزیزالرحمن صاحب فتوی ده چې مخکې ذکر شوه ورونو ټول خلک په ګرویو اخته دي کورنو ګرو کوي او داسې نور داټول په سود کې اخته دي الله جل جلاله د مسلمانانو ته هدایت وکړي.

د جایداد په ګرو کولو سره حج کول که چېرې یو نفر حج ته تلل غواړي او نغدې پیسې ورسره نه وي البته جایداد شته آیا د جایداد په ګرو کولو سره حج ته تللی شي یعني چې دغه پیسې چې د جایداد په ګروی باندې یې اخیستې دي حج پرې کولای شي او که نه ؟ جواب : د جایداد ګرو کول په داسې ډول چې نفع او ګټه مرتهن یعني د پیسو مالک په ګرو شوي جایداد اخلي نو جواز نه لري یعني په دغه پیسو باندې حج کول روا او جائز نه دي دا د لوی عالم مفتي عزیزالرحمن صاحب فتوی ده او په فتاوی دار العلوم دیوبند ( ۶ ټوک ، ۳۵۸ص ) کې ذکرده.

## حق الاستاذ

قال في روح المعاني مع الاشارة الى ان حق الاستاذ على من عَلّمَه حق العظيم ( روح المعاني ۱ج ، ۲۲۹ص ) بيروت قال في تفسير روح البيان قال المشايخ حقوق الاستاذين لاتوبة له منه آه ( ۲ج ، ۴۶ص ).

قال في فتح المعين منها « الاشياء » ان تعظم الاستاذ في اطاعته ومنها ان التلميذ لاينبغي ان ينسي حرمة استاذه وان قدمه استاذه فتح المعين ( ١ج ، ٣٣٢ص ) قال في الهنديه ويقدم حق معلمه على حق ابويه وسائرالمسلمين ولو قال الاستاذه موليينالابأس به وقد قال علي رضى الله عنه لابنه الحسن رضى الله عنه قم بين يدى مولاک عني استاذه آه هنديه ( ٥ج ، ٣٧٨ص ) قال في شرح شرعة الاسلام « ويتملق له » في مختار الصحاح تملق له تملقا وتملاقا اي تود د اليه وتلطف واعلم ان التواضع هو ان يضع شيأ من قدره الذي يستحق به لا الى ان يصل الى غاية التذلل والتملق هو ان يضعه الى ان يصل اليه والتواضع محمود والتملق مذموم الافي طلب العلم فانه ينبغي ان يتملق لاستاذه ويدعو له باالخير سرا وجهرا ويخدمه و ينصره و قال النبي صلى الله عليه وسلم من عَلّم عبدا آية من كتاب الله فهومولاه. وروى عن الامام علي انه قال انا عبد من عَلّمَنِي حرفا والنشد هذين البيتين :

رأيت احق الحق حق المعلم : واوجبه حفظا على كل مسلم

لقد حق انه يهدي اليه كرامة : لتعليم حرف واحد الف درهم

ولاينبغي له ان يخذله اى يترک عونه ونصرته ولا يستأثر اى لايختار عليه احدا فان فعل ذالک الخذ لان والاستيثار فقد قصم اى قطع وكسر عروة فى الْمغْرب عروة القميص و الكوز والدلو مروفة وقد يستعار لما يوثق به و يعول عليه من عرى الاسلام و من احترام المعلم وا جلاله اى تعظيمه ان لا يقرع عليه باب داره بل ينتظر خروجه كما قال الله تعالى وَلَوْ اَنَّهُمْ صَبَرُوْ حَتّى تَخْرُجُ اِلَيْهِمْ الرسول لكان خيرالهم فان النبى صلى الله عليه وسلم معلم للصحابة ولا يخاف فى ما يأ مره به من مباح الدين ويتحري اى يطلب مسرته اى جعله مسرورا في

ذالک المذکور من التواضع والتملق والدعاء والخدمة والنصرة وغير ذالک کله ويقدم حق معلمه اى استاذه على حق والديه وسائر المسلمين فانه روى عنه صلى الله عليه وسلم انه قال خير الآباء من علمک وقد اشير اليه فى قول علي رضى الله عنه رأيت احق الحق حق المعلم « بنوودونکى » کمامر. روى انه قيل لاسکندر ذى القرنين لم تعظم استاذک اکثر من ابيک فقال ونِعْمَ ماقال لان ابي انزلني من السماء الى الارض آه واستاذي يرفعى من الارض الى السماء فاذا کان فى حق الوالد کذالک فيکف بغيره ولايضن باالفتح اى فتح الضاد وى لايبخل بشيئ من ماله عن معلمه ولايتبع ذلته و هفوته ويحمل مايسمع من سقطااى خطاياه على احسن التأويل حملا للمؤمنين على الصلاح وهو اقرب من الفلاح آه شرح شرعة الاسلام ( ٤٣ص ) قالو في تتمة شرح العقائد الجلاليه و کذا قالو حق الاستاذ او کد على حق الوالدين فانهما سببان لفيضان الصورة الانسانية والاستاذ سبب لفيضان الحقيقه الانسانية آه تتمه ( ٩ص ) قال الفقيه ابواليث السمرقندي فى بستان العارفين وينبغي المتعلم ان يعظم استاذه فان تعظيمه يظهر فيه برکة العلم واذا استخف به ذهبت عنه برکة العلم آه بستان العارفين تنبه الغافلين ( ٢٤ص ) ، قال في تعليم المتعلم ومن تعظيم العلم تعظيم المعلم « استاذ » قال علي کرم الله وجهه انا عبد من علمني حرفا واحدا ان شاء باع و ان شاء اعتق و ان شاء استرق آه و قال بعد اسطر فان من عَلّمَکَ حرفا مما تحتاج اليه فى الدين فهو ابوک فى الدين وفى الجمله يطلب رضاه ويجتنب سخطه و يتمثل امره في غير معصية الله تعالى فانه لاطاعة في معصية الخالق کما قال النبى صلى الله عليه وسلم ان شرالناس من يُذْهِبُ دينه لدنيا غيره ومن توقيره توقير اولاده ومن يتعلق به وکان استاذنا شيخ الاسلام برهان الدين صاحب کتاب الهدايه يحکي ان واحد من کبار ائتمة بخارى کان يجلس مجلس الدرس

وكان يقوم خلال الدرس احيانا فاسألوه عن ذالک فقال ان ابن استاذي يلعب مع الصبيان في سكة ويجيئ احيانا الى باب المسجد فاذا رئيته اقوم له تعظيماالاستاذي وكان الامام ابوبكر القاضي الفخرالدين الارسابندي رئيس الأئمة فى مرو وكان السلطان يحترمه غاية الاحترام ويقول انما وُجِدْتُ في هذالمنصب بخدمة الاستاذ فاني كنت اخدم الاستاذ القاضي الامام ابايزيد الدبوسي وكنت اخدمه وكنت اخدمه واطبخ له طعامه ثلاثين سنة وان آكل منه شيئا وكان الشيخ الامام الاجل شمس الأئمة الحلواني رحمه الله قدخرج من بخاري وسكن في بعض القرى اياما لحادثة وقعت له وقد زاره تلاميذه غير الشيخ الامام القاضي شمس الائمة الزرنجي رحمه الله فقال له حين لقيه لِمَ لَمْ تزرني فقال له كنت مشغولا بخدمة الوالدة فقال ترزق العمر ولاترزق الرونق الدرس وكان كذالک فان كان يسكن في اكثر اوقاته القرى ولم ينتظم له الدرس فمن تأذي منه استاذه يحرم بركة العلم ولم ينتفع به الاقليلا . قال في ردالمحتار وفي المنح عن النيرازية وقال الزندويسي حق العالم على الجاهل وحق الاستاذ على التلميذ واحدعلى السواء وهو ان لايفتح الكلام قبله ولايجلس مكانه وان غاب ولايرد عليه كلامه ولا يتقدم عليه في مشيه وحق الزوج على الزوجه اكثر من هذا وهو ان تطيعه في كل مباح. ( ردالمحتار ۵ج ، ۴۸۱ص )

وحُكِيَ ان الخليفة هارون الرشيد بعث ابنه الى الاصمعي ليعلمه العلم والادب فرءاه يوم يتوضأ ويغسل رجله وابن الخليفه يصب الماء على رجله فعاطب الاصمعي في ذالک بقوله انما بُعِثْتُه لتعلمه وتؤدبه فلما ذا لم تامره بان يصب الماء باحدي يديه ويغسل باالاخرى رِجْلَکَ ( تعليم متعلم طريق التعلم ۲۱ – ۲۴ ص ).

معنی : د تفسیر روح المعاني مفسر ویلي دي دې خبرې ته په اشارې سره چې حق د استاذ په شاګرد باندې دا یو عظیم او لوی حق دی. ( بېروت ۱ج ، ۲۲۹ص ) په تفسیر روح البیان کې یې ویلي دي د استاذ څخه د شاګردانو عاق کېدل یعني چې شاګرد عاق شي د استاذ له طرفه نو ببخي یې دعا نه قبلېږي ورونړو ترهیبي خبره ده. ( روح البیان ۲ج ، ۴۶ص ) ورونړو د عاق په کلمه کې دری حروف دي اول عین د عیب له کلمې څخه ، الف د اهانت له کلمې څخه او قاف د قهر له کلمې څخه دغه دری کارونه چې د اولاد او یا شاګرد څخه صورت ومومي نو عاق شو نو د دغو کسانو په اړه یې په فتح المعین کتاب کې ویلي دي چې د استاذ د حقوقو له جملې څخه یو دادی چې تعظیم د استاذ په اطاعت سره کوي او بعضې حقوق یې دادي چې نه ښایي شاګرد له چې د خپل استاذ تعظیم هېرکړي اګر که شاګرد د علم له مخې له استاذ څخه مخکې شي یعني همېشه به یې احترام کوي. ( فتح المعین ۱ج ، ۳۳۲ص ) په فتاوی یې عالمګیري کې یې ویلي دي چې مقدم دی حق د استاذ په مور او پلار باندې او که چېرې شاګرد استاذ ته وویل مولینا فرق نه کوي ځکه حضرت علي رضی الله عنه خپل زوی حسن رضی الله عنه ته وویل قم بین یدی مولاک چې استاذ وو. په شرح شرعة الاسلام کې یې د استاذ حقوق داسې بیان کړي دي : تملق او تواضع به کوي د دې دوو په معنی کې فرق دی تواضع ممدوح ده ښه ده او تملق مذموم دی بد دی مګر په طلب العلم کې تملق هم ضروري دی یعني دعا ګانې په خیر سره استاذانو ته کوی په پټه او په جهر سره یعني په هر وخت کې ، خدمت به یې کوي او په کارونو کې به کومک ورسره کوي او نبي کریم صلی الله علیه وسلم ویلي دي چې که چا یو آیت د قرانکریم چاته وښودلو فهومولاه او د حضرت علي رضی الله عنه څخه روایت دی ده ویلي دي : زه مریې د هغه چایم چا چې یو

حرف ماته ښودلی وي او دغه دوه بیتونه یې ویلي دي : مالیدلی دی ډېر حقداره حق حق د استاذ او واجب ترازروی حفظ په هر مسلمان په تحقیق سره حقه ده چې هدیه ولېږي استاذ ته از روی کرامة عزت یې د پاره د ورښودلو دژحرف په مقابل کې چې شاګرد ته یې ښودلې وي زر درهمه ( ۱۰۰۰ ) نو تاسې فکر وکړی چې استاذ څومره زیات حروف کلمې مطلبونه او علمونه ور زده کوي شاګرد ته او ضرور نه دي نه ښایي چې څوک خذلان ، ذلیل کول د استاذوکړي دا په دې معنی سره چې کومک ورسره پرېږدي او هېڅوک تر استاذ مختاره نه بولي او نه یې ګرزوي که چېرې یې دا کار وکړ نو ده هغه محکمه کړی ماته کړه او د استاذ د احترام له جملې څخه دادی چې دروازه به نه ورټکوې ترڅو راووزي په خپل طبیعت سره او دی به انتظار ورته وباسي لکه چې الله جل جلاله د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په باره کې ویلي دي : وَلَوْ اَنَّهُمْ صَبَرُوْ حَتّٰى تَخْرُجُ اِلَيْهِمْ والرّسُولُ لَكَانَ خَيْراً لَّهُمْ څکه نبي کریم صلی الله علیه وسلم د صحابه کرامو استاذ وو د آیت شریف لنډه معنی: الله جل جلاله ویلي دي که چېرې دغه صحابه انتظار وباسي ترڅو دوی ته نبي کریم صلی الله علیه وسلم راووزي نو دا د دوی لپاره غوره ده او شاګرد به د استاذ مخالفت نه کوي په هغه کارونو کې چې په دین کې مباح وي یعني روا وي او استاذ به په ذکر شوو کارونو کې خوشحاله کوي لکه په خدمت ، کومک او غیره کې او د استاذ حق به د مور او پلار او ټولو مسلمانانو په حقوقو باندې مخکې کوي څکه داسې حدیث شریف روایت شوی دی خیر الآباء من عَلّمَکَ بهترین پلارونه هغه دي چې تاته یې علم درښودلی وي لکه چې همدې ته حضرت علي رضی الله عنه په هغه بیتونو کې اشاره کړېده ، په خپل مال به شاګرد استاد ته بخیلي نه کوي او د ده ذلت به نه غواړي او که چېرې یې د استاذ څخه کومه خطا کېږي د هغې لپاره به یوښه تأویل پیداکوي یعني چې د

استاذ به دا مطلب وو چې چې حمل کول د مسلمانانو په صلاح وي او دا کامیابی ته نیژدي ده. (شرعة الاسلام ۴۳ص)

علماوو په تتمه د شرح العقائد الجلالیه کې ویلي دي علماوایي : د استاذ حق ډېر مؤکد او کلک دی په حق د مور او پلار باندې ځکه دغه مور او پلار سببان دي لپاره د برکتونو د انساني صورة او استاذ سبب دی د برکتونو حقیقي انساني لپاره. (تتمه شرح عقائد ۹ص)

فقیه ابو الیث په بستان العارفین کې ویلي دي : ضروري دي د شاگرد لپاره چې د استاذ تعظیم وکړي ځکه چې دغه تعظیم د استاذ په شاگرد کې برکتونه ظاهره کوي او که چېرې یې استخفاف او سپکوالی وشي بیایې دغه د علم برکت ختمېږي. (بستان العارفین تنبه الغافلین ۲۴ص)

د تعلیم متعلم مصنف ویلي دي د علم د زده کړې طریقه داده او تعظیم د علم څخه تعظیم د معلم او استاذ دی ، حضرت علي کرم الله وجهه ویلي دي : زه د هغه چا مریې یم چې ماته یې یو حرف را ښودلی وي که یې خوښه شوه خرڅ مې د کړي او که یې خوښه شوه آزاد به مې کړي الخ او لپسن د څو خطونو ویلي دي : چې که چا یو حرف داسې ورته وښودلو چې هغې ته یې په دیني امورو کې احتیاج او ضرورت وو نو دغه کس په دین کې ستا پلار دی او في الجمله رضا به یې طلبوي او د قهر څخه به یې اجتناب کوي یعني نه به یې په قهر کوي ، امر به یې مني بدون له گناه څخه یعني که یې په گناه امر درته کولو نو بیایې مه منه لکه چې په احادیثو کې راغلي دي : لاطاعة للمخلوق في معصیة الخالق او نور حدیثونه.

قال النبي صلی الله علیه وسلم ان شرالناس من يذهب دينه لدنيا غيره او د استاذ د والاد سپک گڼل د استاذ سپک گڼل دي او همدارنگه د خپلوانو يې او د هدايې کتاب مصنف شيخ الاسلام حکايت کولو چې د بخاري د لويو علماوو څخه وو ، کله به د درس د مجلس څخه ولاړېدو او کله به په مابين د درس کې کېناستلو نو يو چا پوښتنه ورڅخه وکړه چې دا کار ولې کوې نو ده ورته وويل : د هلکانو سره زما د استاذ زوی بازي او ساعت تېری کوي چې راښکاره شي نو زه د احترام له وجهې ورته ولاړ شم د خپل استاذ د احترام په خاطر باندې.

ابوبکر القاضي فخرالدين رسابندی د مرو وطن د لويو علماوو رئيس وو او پاچاه به د دغه ذکرشوي عالم زيات احترام کولو ځکه ده ويل : ما چې دا منصب پيداکړی دی په خدمت د استاذ سره مې پيداکړی دی ځکه ما د استاذ خدمت مې کولو د استاذ القاضي الامام بايزيد الدبوسي او ( ۳۰ ) کاله مې کتغ ورته پخولو خو ما به هېڅ هم نه ورڅخه خوړل.

په ردالمحتار کې يې ويلي دي الخ وقال الزندويسي حق د عالم په جاهل او استاذ په شاگرد باندې يوشی دی هغه دادی چې د عالم او استاذ په مخکې به جاهل او شاگرد خبرې نه کوي او نه به يې په ځای باندې کښېني اگر که بل ځای ته ولاړ شي ، د خبرې رد به يې نه کوي او د تگ په وخت کې به نه ترې مخکې کېږي. ( ردالمحتار ۵ج ، ۴۸۱ص )

حکايت دی چې هارون الرشيد خپل زوی د اصمعي په نوم يو عالم ته د علم د زده کړې او ادب لپاره ورلېږلی وو او يوه ورځ يې وليدو چې اودس کوي او پښه پرېمنځي نو د خليفه ( پاچاه ) زوی اوبه پرې ورتويوي نو اصمعي يې

ملامت کړ چې ماخو درته د ادب زده کولو لپاره رالېږلی او ولې په یوه لاس باندې اوبه په پښه نه دراچوې او په بل یې ولې نه دروینځې.

## د کافر نوکري او مزدوري

د کافر نوکري او مزدوري په درې قسمه ده : علامه لکنوي صاحب په مجموعة الفتاوی کې لیکلي دي د کفارو نوکري په درې قسمه ده اول : جائز بلاکراهت لکه اصلاح د مصالحو ، احقاق د حقوق ، دفع دزدان ( غله ) و قطاع الطریق او جوړول د پلونو ، مهمان خانو او نورو عمارات نافعه وو لکنوي صاحب دلیل د یوسف علیه السلام غوښتنه له کافر پاچاه څخه د خزانو د وزیر په حیث ټاکل دي او دوهم دلیل یې د موسی علیه السلام د مور قصه ده چې د فرعون لپاره یې مزدوري قبوله کړه لپاره د تي ورکولو د موسی علیه السلام لپاره. دوهم : سره له کراهت لکه هغه نوکري چې په هغه کې لزوم د درېدلو د دوی لپاره دې تعظیم وي او په هغه کې د مسلمان د شان بې حرمتي وي. دریم : حرام مزدوري لکه نو کري په معاصي وو او منهیاتو شرعي وو لکه فوجونه او عسکر جوړول لپاره د مقاتلې د اهل اسلام او مسلمانان درباندې وژني دغه مزدوري حرامه ده. قدرمنو مسلمانانو دا د علامه عبدالحی لکنوي صاحب فتوی ده زموږ لپاره د لکنوي صاحب فتوی ګانې ډېرې قوي دي او ډېرې پخوانی دي که څوک په دې مسئله کې تفصیل غواړي نو تفسیر معارف القران سورة یوسف د دې آیت اِنّي حفیظ علیم ، تفسیر وګوری ، ما په دې مسئله باندې ډېر کتابونه کتلي دي خو د لکنوي صاحب په فتوی مې اکتفا کړې ده. ( مجموعة الفتاوی علی هامش خلاصة الفتاوی ۳ج ، ۱۰۷ص )

## په ټوپک چې کله ښکار وشي

علامه عبدالحی لکنوي صاحب په مجموعة الفتاوی علی هامش خلاصة الفتاوی باندې فتوی ورکړېده چې په ټوپک سره ښکار کول یعني ویشتل او بیا چې مستقل ذبح نه شي نظر په قواعدو فقهیه وو باندې خوړل یې حرام دي او لکنوي صاحب وایي چې په همدې باندې ابن نجیم هم فتوی ورکړېده ، قدرمنو مسلمانانو د مولانا عبدالحی لکنوي صاحب غوندې د لوی عالم محقق او مدقق د امت او مذهب حنفي فتوی کفایت کوي خو بیا به هم په دې مسئله کې د علماوو اقوال رانقل کړو. مجموعة الفتاوی علی هامش خلاصة الفتاوی ( ۴ج ، ۲۹۹ص ) ، د ټوپک په ښکار کې ډېر اختلاف دی زه یې فقط حوالې رانقل کوم ، قاسمیه ( ۱۳۰ص ) ، فتاوی ابن نجیم علی هامش غیاثیه ( ۱۷۴ص ) ، ردالمحتار ، قاضي خان او په بدرالفتاوی کې یې هم حرام گرځولي دي ( ۳۹۸ص ) .

بعضې علماء بیا جواز ورکوي لکه علامه صنعاني او علامه شوکاني سبل السلام ( ۴ج ، ۱۸۵ص ) تفسیر فتح القدیر دوی وایي چې هغه پخوانی ټوپک یو قسم وو چې پخې او کلکې لوټې به یې غور ځولې نو په هغه کې تېره والی نه وو او په دې مرمی کې تېره والی دی اصل فتوی همغه د لکنوي صاحب ده. که څوک نور تفصیل غواړي نو ملتقط د مولوي عبدالستار بلوچستاني د وگوري.

## الید الیمنی عقد الانامل د احادو طبقه خنصره بنصره او وسطی

په گوتو باندې شمارل دغه یوه مسنونه طریقه ده چې د گوتو په راغونډولو او خلاصولو سره سرته رسېږي اعداد یې ملحوظ کړه او تفصیل ته

يې غوړ شه : لېاره د واحد يعني يوه عدد ( ۱ ) خنصره د ښي لاس راغونډول او د دوه عدد ( ۲ ) لپاره بنصره د خنصرې سره ضم کړه او د دريو لپاره ( ۳ ) وسطي ورسره ضم کړه او په دې دريو عقدو کې بايد د ګوتو سرونه ښه راغونډ او د ګوتو ببخونو ته رانيږ دې کړل شي او د څلورو ( ۴ ) لپاره بايد خنصره پورته او قائمه کړې او بنصر او وسطی په خپل حال باندې ضم پاتې وي د پنځو ( ۵ ) لپاره بنصره هم پورته کړل شي ، د شپږو ( ۶ ) لپاره بايدوسطي پورته کړل شي او بنصره بايد غونډه کړل شي د اوو ( ۷ ) لپاره به بنصره پورته کړي او خنضره په اقصی او طرف د کف چې ساعد ته مائل وي راغونډه کړي د اتو ( ۸ ) لپاره بنصره هم د خنضرې سره يوځای ضم کړه او د نهو ( ۹ ) لپاره به وسطي د هغوی سره يوځای ضم کړي او په دې وروستيو دريو عقدونو کې به ګوتې اخيري حصه د کف ته چې د ساعد سره نيږدې او جوار دی مائل کړي چې د اول سره يې مشابهت رانه شي.

د عشراتو لپاره عقدونه سبابه او ابهامه دي د لسو ( ۱۰ ) لپاره د ښي لاس د سبابې ګوتې د نوک سر به په باطن د مفصل اول د انمله د ابهامې کېښودل شي چې د دې ګوتو په منځ کې فرجه ګرد د حلقې په شان متشکل شي د ( ۲۰ ) لپاره د سبابې د لانديني عقدو بند چې متصل د وسطي سره دی د ابهامې د نوک په شا کېږدی په داسې طريقه چې ته به ګمان کوې چې سر د ابهامې يې په مابين د وسطي او سبابې کې نيولی دی لکن دغو وسطي لره په دلالت د شلو کې هيڅ دخل نشته ځکه چې لاندې بند د سبابې چې په نوک د ابهامې ايښودلی وي دا خپله دلالت کوي په شلو باندې او د دېرشو ( ۳۰ ) لپاره ابهامه قائمه کړه د سبابې د ګوتې سره د په طرف د نوک کېښودله شي لکه څرنګه وضعه د سبابې په ابهامه د قوس شکل جوړوي او د څلوېښتو ( ۴۰ )

لپاره د ابهامې د نوک په طرف سره دلاندې عقد په ظهر د سبابې کېښودلی شي
په داسې طريقه چې په منځ د ابهامې او د کف کې هېڅ فرجه او سوری پاتې نه
شي او د پنځوسو ( ۵۰ ) لپاره سبابه قائمه کړی او ابهامه به ټوله ورسره ضم
کړی او په کف باندې بايد کېښودل شي په برابری د سبابې د شپېتو ( ۶۰ )
لپاره ابهامه به ضم کړي په باطن د عقد الثاني د سبابې په شا د نوک د ابهامې
د اوياوو ( ۷۰ ) لپاره ابهامه به ولاړه کړې او په باطن د عقد اول يا ثاني د
سبابې په شا د نوک د ابهامې بايد کېښودل شي د اتيا وو ( ۸۰ ) لپاره به ابهامه
قائمه کړي او طرف د سر د سبابې په شا د مفصل اول د ابهامې کېښودل شي د
نوي ( ۹۰ ) لپاره د سبابې د نوک سر په باطن د مفصل دعقد الثاني د ابهامې
کېښودل شي. طبقه مأت خنصره بنصره وسطي گوتې د چپ لاس پوه شه په دې
چې په ښي لاس کې کوم عقدونه چې په آحادو دلالت کوي د يو څخه تر نهو ( ۱
– ۹ ) پورې همدغه عقدونه د چپ لاس دلالت کوي په مأ وو يعني سلونو د سلو
څخه تر نهه سوه ( ۱۰۰ – ۹۰۰ ) پورې طبقه الوف سبابه ابهامه د چپ لاس په
دې خبره باندې پوهېدل په کار دي چې لکه څرنگه چې په ښي لاس کې کوم
عقدونه د عشراتو لپاره وو همغه په چپ لاس کې د الفاوو لپاره دي يعني د
زرو څخه تر نهه زرو ( ۱۰۰۰ – ۹۰۰۰ ) پورې دلالت کوي پوه شه په دې باندې
چې په ذکر شويو عقدونو کې تر ( ۹۹۹۹ ) پورې شماره کېږي او د لسو زرو (
۱۰۰۰۰ ) لپاره بايد د دواړو لاسو گوتې په داسې طريقه سره و غزولې شي چې
يوه په بله سره ضم وي او د ابهامې سر د سبابې د سر په طرف ضم وي لکه:

قدرمنو طالب العلمانو دغه حساب باید عملاً زده کړی ځکه د احادیثو په کتابونو او د فقې شریفې په کتابونو کې زیات ذکر شوی دی نو باید هغه کیفیت او رقم یې زموږ زده وي لکه په حدیث کې راځي عَقَدَ تِسْعِیْنَ یا لکه د اشارې په تشهد کې په حدیث کې راځي چې عقد ثلاثا و خمسین یا لکه د هدایه نکاح په طلاق بحث کې راغلي دي نو باید چې پرې پوه وو ، او ما په خپله د خپل قدرمن استاذ شیخ الحدیث مولانامحمد ادریس صاحب د امت برکاته و فیوضاته چې د زرگونو علماوو استاذ دی د هغه څخه مې عملاً زده کړی دی د هرعدد د عقد الانامل شکل زده کړی دغه تفصیل علامه شامي صاحب په مجموع رسائل ابن عابدین شامي کې شته چې قوي کتاب دی.



## د فټبال والیبال او نورو سپورتي لوبو حکم

څه وایي علما د دین متین د کراته بازی ، فوټ بال ، زیبایي اندام ، والیبال ، کرکټ او داسې نورو بازیو په هکله چې آیا جواز لري او که نه؟

جواب : که د داسې بازی څخه کومه معتد بها فائده مقصود وي بیا جائز دی خو شرطونه لري یو دا چې په دې کې به کوم کار مخالف د شرعې نه وي ګډ ستر عورت به ضروري وي لکه نارینه به له نامه څخه تر زنګانه پورې پټ وي چې زنګون هم ستر دی او د دې بازی په سبب به په ضروریاتو د اسلام کې لکه : لمونځ او داسې نورو کې خلل نه واقع کېږي او تشبه باالکفار به نه وي یعني لباس به یې هم اسلامي وي ، داسې نه چې فقط یو شورت وي ( چوټه غوندې ) ، په غېږو باندې ورتلل چې په ردالمحتار کتاب الحظر والاباحة کې ذکرکړي دي چې مصارعه یوبل په غېږو کې ځملول بدعت نه دی ځکه نبي کریم صلی الله علیه وسلم ډېر کافران ځملولي دي له هغو څخه ابن الاسود جُمَحي او رُکانة دی دغه رکانة کافر یې دری واره ځملولی دی ځکه چې دغه کافر دا شرط ایښودی وو چې که چېرې زه چا ځملولم یعني نبي کریم صلی الله علیه وسلم نو ایمان راوړم چې دغه اسلام راوړل د کافر یوه لویه فایده وه نو ځکه نبي کریم صلی الله علیه وسلم په غېږو ورغلی دی ، کما فی شرح الشمائل للقاري فیجوز فی کل شیئ ان قصد به الفوئد کثیرة بعضې له فایدو څخه قوت او صحت د انسان د بدن دی که چېرې بدن د مسلمان صحیح ، جوړ او قوي وي نو ټول عبادات او الهي اوامر په ښه طریقه سره په ځای کولای شي لکه : نبي کریم صلی الله علیه وسلم وایي : اِغْتَنِمْ خَمسا قبل خمس صحتک قبل سقمک غنیمت وګڼه پنځه شیان مخکې له پنځو شیانو اول صحت مخکې له مرض څخه یعني چې کله جوړ وې نو عبادت الهي کوه ، د مسلمانانو حقوق په ځای کوه لکه : د مریض پوښتنه ،

جنازه او داسې نور لکه : د اعصابو ډاکتران وايي چې سپورت او ورزش د اعصابو صحت ته زياته فايده لري بلکې د ټولو مرضونو څخه د دفاع يوه ثابته او غټه وسيله ده واما اشالة الحجر الخ لکه تيږه غورځول او داسې نور لابأس باک نه لري يعني پروا نه لري. قدرمنو مسلمانانو په اسلام کې تنګ نظري کول نه دي په کار په دې معنی چې دغه مسابقې چې په کتابونو کې يې بيان شوی دی او شروط ورته ذکر شوي دي نو داشرطونه که په ځای وي او بيا وشي پروا نه لري او د انسان صحت ته ګټه لري.

قدرمنو مسلمانانو په دې مسابقو کې يوه بله خبره ډېره ضروري ده هغه داچې قمار بايد په کې نه وي او د وخت ډېره ضايع بايد په کې ونه شي ځکه چې وخت ته په اسلام کې ډېر زيات ارزښت او اهميت ورکړل شوی دی لکه څرنګه چې مخکې حديث ذکر شو چې فَرَاغَکَ قَبْلَ شُغُلِکَ يعني نبي کريم صلی الله عليه وسلم وايي د فارغ وخت څخه ګټه پورته کړه يعني وخت مه ضائع کوه د الله جل جلاله عبادت او د دين خدمت په کښې وکړه يعني د ورزش او لوبې وخت بايد معين وي داسې نه چې د سهار څخه تر ماښامه ټول وخت په لوبو کې تېروو. دامسئله په بدرالفتاوی کتاب کې په حواله د نورو معتبرو کتابونو ذکر شوې ده ( ۴۰۴ ص ) او ردالمحتار دې وکتل شي ، په مشکوة شريف کې حديث شريف دی : نبي کريم صلی الله عليه وسلم په منډه کې له بي بي عائشې رضی الله عنها سره مسابقه کړېده يو وار يو مخکې شو او بل وار بل يعني يو وار نبي کريم صلی الله عليه وسلم مخکې شو او بل وار بي بي عائشه رضی الله عنها چې په دې کې حسن معاشره مع النساء نبي کريم صلی الله عليه وسلم خپل امت ته ورښيي ، ورونو په آسانو باندې سپرېدل ، ښنبه ويشتل ، لامبو وهل ، آب بازي کول په دې ټولو سره مسلمان ته اجر حاصلېږي خو چې نيت په کې صحيح وي لکه چې مباح کار

په صحيح نيت سره طاعت بلل کېږي نو قدرمنو مسلمانانو په ټولو مسابقو او لوبو کې چې د انسان بدن ته ګټه رسوي او هغه کارونه په کې ترسره نه شي چې د اسلام خلاف وي او اسلامي شروط په کې مراعات شي نيت په کې صحيح وي روا څه بلکې ثواب پرې مرتب دی.

## د تصنيفونو د طباعت (د چاپ حق) خرڅول حرام دي

حکيم الامت حضرت مولانا اشرف علي تهانوي صاحب په خپلو کتابونو کې دامسئله ليکلې ده چې د کتابونو د تصنيفولو د چاپ حق خرڅول د مصنف او يا مؤلف لخوا حرام دي يعني چې مصنف يې د چاپولو د حق په مقابل کې د مطبعو له مالکانو څخه امتياز اخلي دا حرام دی سره د دې چې ذکر شوي مولانا صاحب د(۱۰۰۰) کتابونو څخه زيات کتابونه تصنيف کړي وو خو ده مبارک نه د چاپ حق په چا خرڅ کړی او نه يې هم د چا څخه کوم امتياز اخيستی نو موږ هريو مولوي نقيب الله منيب او قدرمن استاد نجيب الرحمن هلال له چا څخه د هېڅ امتياز غوښتونکي نه يو ځکه موږ دغه کار يوازې او يوازې د الله جل جلاله درضا لپاره کړی او هرڅوک چې زموږ سره د دې کتاب په چاپولو کې کومک او مرسته کوي يايې چاپوي د الله جل جلاله له دربار څخه ورته د دارينو سعادت او نېکمرغي غواړو په آخر کې د استاد محترم څخه يو جهان مننه کوم چې د دې کتاب په ترتيب کولو کې يې زما سره ډېره مرسته وکړه.

الحمــــد الله الـــذي وَفَقّنَــا على تــأليف هـــذ الكتاب وترتيبـــه والصـــلوة والســـلام علـــى محمـــد وعلـــى آلـــه واصـــحابه الطيبـــين الطـــاهرين اجمعـــين وكـــان خـــتم هـــذ الكتاب ســـنة الـــف واربـــع مأئـــة وثمانيـــة وثلاثين سنة قمري ليلة سبع وعشرين من رمضان المبارك.

**ختم**

**۳۱/۳/۱۳۹۶**

**د روژې مبارکې میاشتې اووه ویشتمه (۲۷) نېټه**